رمضان / 1429هـ

# نبوي دولت

## د اسلامي دولت د پخوانۍ وزير دفاع
## الشيخ ابوحمزة المهاجر رحمه الله ليکنه

سريزه ، زياتونې او تعليق
الشيخ أبوالغيداء الأردنى

## بسم الله الرحمن الرحيم

## د أبو الغيداء الأردني سريزه

الحمد لله رب العالمين وأتم التسليم على سيد الخلق والمرسلين سيدنا محمد ومن تبعه بإحسان إلى يوم الدين ... أمابعد :

د الله تعالى د حمد او ثناء (ستاينې) ويلو او د مخلوقاتو او پيغمبرانو په سردار محمد صلى الله عليه وسلم د سلام و درود ، او د قيامت تر ورځې په ټولو نيکانو تابعدارانو د درود ځخه وروسته!

ما د محترم مجاهد شيخ، او قدرمن ورور، د عراق د اسلامي دولت د دفاع د وزير بيان واوريدو کوم چې د (الدولة النبوية) تر عنوان لاندي وو ، حقيقت دا دي چې د هغه هره خبره د حق د غوښتونکو او شاگردانو لپاره د لاري داسې مشال دي چې د ژوند لاري به يې پري روښانه او د ريښتيني سبا درشل ته به پري ورسيږي. او د ړوند زړه او ړندو سترگو والا به پري د ناکامې او شرمندگې کندي ته غورزيږي.

دا بيان ډير جامع مانع (پوره او هراړخيزه) دي، هرڅوک چې يې په سمه طريقه ولولې، سوچ پکې وکړې ، او ښه کره يې ياد کړې، نو ډيره گټه به ورته ورسوي، او بل په دي کې د ډيرو هغو شبهو رد شوي کومې چې باطل پرسته ډلې يې د جهاد په مخ کې د کلکو او غټو خنډونو په څير استعمالوي ترڅو د جهاد لاره کړکيچنه او ناروا د دي په خاطر معرفي کړي چې د جهاد مينه وال ورڅخه کرکه او نفرت وکړي.

ماوليدل چې زمونږ د جهادي اميرانو او مشرانو تقريرونه ډير زيات گټوردي ځکه چې دي کې ډيري داسي مهمې او ضروري مسئلې څيړل شوي چې هغې ته د امت ضرورت دي، نو ما سره دا ويره پيدا شوه هسې نه چې د وخت او کلونو په تيريدو او دعبرتناکو واقعو او مشکلاتو د زياتيدو سره دا تقريرونه ختم او ورک شې ، نو ځکه مې دا اراده وکړه چې دغه تقريرونه د يو کتاب په شکل کې وليکم او هري جانبې موضوع ته ځانگړي عنوان ورکړم ترڅو موحدينو (سوچه مسلمانانو) ورونو ته يې لوستل آسان او د خپلو مسئلو د حل کولو لپاره يو مرجع (د مسئلو د شرعي حل او دليل پيداکيدني

ځاي ) شي ، او زه د خپل دغه ناځیزه (کم او لږ) کوشش اجر او ثواب له هغه الله تعالی څخه غواړم چې د هیڅ نر ،او ښځې ، خواري او کوشش بېهوده نه پرېږدي، او په دي هکله داسې فرمايي: (يَوْمَئِذٍ يَصْدُرُ النَّاسُ أَشْتَاتًا لِيُرَوْا أَعْمَالَهُمْ . فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ . وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ ) [1] .

**ترجمه : ‹د قيامت په ورځ به خلك ډلې ډلې د خپلو عملونو د کتلو لپاره ( دحشر میدان ته ) راشي ، نو چا چې د ذري ‹دومره وړوکې چې تقسیمیږی نه› په اندازه دخير كار كړي وي نو ‹اجر به يې› ويني. او چا چې د ذري په اندازه د شر كار كړي وي ‹سزا به يې› ويني›.**

او زه د ټولو موحدینو او دینداره شاګردانو او د علم د طالبانو څخه په کلکه دا غوښتنه کووم چې همدا طريقه (دمشرانو تقريرونه په کتابي شکل کې ليکل) خپله کړي، او د هغوي تقريرونو ته ترتيب ورکړي او خلکو ته يې د فائدي په نيت پيش کړي ، امید دې چې الله تعالی په پري مسلمانانو او مونږ ته ګټه ورسوي.

له الله تعالی څخه سوال کووم چې زمونږ دولت سره کومک وکړې ، او بيرغ يې هروخت اوچته او رپانده لري، او دوشمن مو ناكام او بيرغ يې ټيټ او نسکور کړي، الله تعالی په دي کار قادر دی ، او ټول حمد او ثنا هغه ذات لره ده چې د هغه د نعمتونو او احساناتو په سبب نیک کارونه سرته رسیږي او انجامیږي.

ستاسی ورور أبوالغيداء الأردني

---

**(1 ) سورة الزلزال (6، 7، 8).**

د شیخ أبوحمزه المهاجر سریزه

الحمد لله مالك الملك ، المتنزه عن الجور ، والمتكبر عن الظلم . المتفرد بالبقاء ، السامع لكل شكوى، والكاشف لكل بلوى ، والصلاة والسلام على من بعث بالدلائل الواضحة والحجج القاطعة بشيراً ونذيراً وداعياً إلى الله بإذنه وسراجاً منيراً.... أمابعد:

**ټول حمد، ثنا او صفتونه هغه الله تعالی لره دي چې د هرڅه مالك او واکدار دي، دظلم نه پاك دي، د ظلم کولو نه دهغه شان اوچت دي، همیشه یواځې پاتیکیدونکې او پناه پري نه راتلونکي دي، د هر چا د شکایت اوریدونکې دي، د هر مصیبت لیري کوونکې دي، او درود سلام دي په هغه چا (پیغمبر علیه السلام) چې ښکاره او واضحه دلیلونو سره رالیږل شویدی، زیری ورکوونکي، یره ورکوونکې، د الله تعالی په امر د هغه لوری ته دعوت کوونکې او رڼا او روښنایي دي.**

د الله تعالی د ثنا او په محمد صلی الله علیه وسلم د درود سلام ویلو نه وروسته !!

باید چې هر موحد مسلمان په دي پوه او آگاه وي چې ټوله کفري نړي اګر که خپلو کې یې ځایونه، فکرونه، منهجونه، تګلاري، مصلحتونه، او ګټې جدا وې خو هغوي په دي پوه او خبر دي چې هر ځاې کې جهاد خپلې ثمرې او نتیجې ته ورسیږي ، او مجاهد کامیاب او د واک او قدرت واګې ترلاسه کړي ،نو ضروری ده چې د الله تعالی حکمونه به په ځمکه کې پلي (عملی) کیږی، او اسلامي خلافت به بیا په خپلو پښو ودریږي ، نو دا خو کافرانو ته د خطر زنګ او د تشویش خبره ده، ځکه چې په دی لاره کې ویني تویيږي( تلیږی)، سرونه کولیږي او غوځیږي، واکداران د واکدارۍ له تخته راغورځیږي، نو دا (جهاد) داسي مسئله ده چې ټولو کافرانو اتفاق کړیدي، چې دیته به نه اجازه ورکوي او نه به د جهاد سالارانو او مشرانو سره روغه جوړه او صلحه کوي، نو د دي شومو اهدافو د پلي کولو لپاره یې خپل ټول امکانیات په کار اچولي، او ټول د اخلاقو، انسانیت، همدردی،بشردوستي،او .... معیارونه یې دپښو لاندي کړي، او حال داچې زیات وخت دوي نورو کمزورو خلکو او خاصکر مسلمانانو سره د همدي معیارونو په سر تعلقات خرابوي، نیوکې پري کوي، دښمني او جنګونه ورسره کوي.

خو د تأسف او خفګان ځاي دادي چې مونږ داسې امت يو چې د ذلت او رذالت د حکومتونو په لمن کې پيدا شوي او ترسيوري لاندي يې رالوي شوی يو ، او دعزت او سرلوړي ټولو معناګانو څخه يې ليري ساتلي يو،او خپل د عزت تاريخ مو هير او د جوړويد او په پښو ودريدو پړاوونه مو شاته وغورځول . خو دا اړينه ( ضروري) ده يې بايد لږ هغې خواته توجه وکړو او مخ ورواړوو ، او بيا خاص هغه څه چې د نبوي دولت سره اړيکه او تړاو لري،چې نبوي دولت څنګه جوړ او پرمختګ يې وکړو ، ځکه چې د ځينو خلکو په ذهن کې د اسلامې دولت مفهوم د هماغې طاغوتې دولت د مفهوم په شانته شعوري يا لاشعوري پيچکاري شوې کوم چې سايکس بيکو جوړ کړی کوو ، لکه د صدام ، الأسد ، او مبارک بلکې نامبارک دولتونه.

او له بلې خوا ځينو په دي غلطې کې پريوتې چې د اسلامې دولت مقصد به د هارون الرشيد د دولت په شانته وې چې د اسمان وريځو سره ته به يې ويلي هر چيرته جې باران کوي ويې کړه، خراج به دي مونږ ته راځي، او سره زر به يې د اوبو په شانته په جامونو کې راټولول، او دومره زياتي لښکري به يې ليږلي چې اول سر به يې دښمن او اخري سر به يې په بغداد کې وو.

نو راځئ چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم مدينې ته سر ورښکاره کړو او وګورو اګر ډير کم هم وي، چې نبوي دولت څنګه د جوړيدو په لوري وخوزيدو ، او آيا يواځې مدينه د کمزورو ملسمانانو پناه ګاه وه ؟ او که نه دا د مال او ځان د قربانوولو يو

نوي دور او مرحله وه ، او د غريبۍ، محتاجۍ ،ويري ، لوږي، د مال، نفس او ميوو د کموالۍ يو نوي او نااشنا امتحان ورکول وو؟

غواړو چې په دي پوهه شو چې ايا نبوي دولت د اولۍ ورځې څخه داسې قوي او مضبوط وو چې نه هواګانو خوزولي او نه فتنو ريږدولي شو ، او که نه زړونه له ډيري ويري تر ستوني او مري رارسيدلي او خلکو په خپل رب ګومانونه کړی وو .

ايا د خلکو کرنې او فصلونه سرسبزه ، تجارتونه يې ګړندي، اوسرشميرنه يې زياته شوه؟ او که نه د الله په لاره کې ځوانان او بوډاګان د فصلونو په شانته لو او مړه شوه؟ او تجارت يې په ټپه ودريدو؟ او فصلونه يې تباه او برباد شوه ؟ ايا هغه ځاي (مدينه منوره) د خوړو اوبو او پاکيزه هوا والا وه ؟ او که نه ډيرو وباګانو او د اوبو نشتوالۍ سره مخ وو؟ او يا نبوي لښکري د شمير په لحاظ زياتي او د اسلحې نه برخمنې وي؟ او که نه لږ،ذليله، بي اسلحې او ناچيزه او د غريبي ژوند يي تيروو لکه الله تعالى چې يې داسی صفت کوي: (وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ) . الله تعالى په بدر کې کامياب کړي او تاسې ډير کم او بی کسه وي.

په اخيره کې دا وايم چې د دي کتاب او يادونې مقصد دادي چې مونږ په عراق کې ميشت يو، او ټول موحدين راسره دي نو مونږ د ډيري خوشحالۍ احساس کوو ، او يو څو ورځې وروسته به دويم پړاو او مرحلې ته ورسيږو چې د رافدينو په ښارونو کې اسلامې دولت قائم او اعلان کړو.

دوه کاله صبر ، حوصله، قرباني او کوششونو وو ، يواځې دوه کاله چې لا تراوسه پوره هم نه دي، خو مونږ پکې د کافرانو، او دهغوي د ټولو مزدورانو او لاسپوڅو سرونه قلم او د دښمن زاره مو ترکه وچوله او دمسلمانانو زړونه مو پري يخ کړه .

دوه کالو مو په خپلو وينو کشتۍ روانه او په خپلو سرونو او کوپړيو او ککريو د خلافت قلعه جوړ او اوچته کړه ، دوه کاله وشو او په عراق کې د اسلام ځوانان د الله په امر ثابت قدمې ولاړ دي، سره د دي چې ډير تاوده ساړه غمونه،تکليفونه، فتنې ، او د باطل په ميزايلو زمونږ شاګانې د پرون د ملګرو او دوستانو له خوا وويشتل شوي. اومتل دى وايي : **(الضربة التي لاتقصم تقوي)** کوم ګذار چې خنسا او شنډ نه کړي مضبوطيږي.

نو دالله تعالى حمد ، ثنا او ستاينه ده چې نن ورځ مونږ په ډيري ثابت قدمې او د الله تعالی په کومک مو يقين دي ، او په دولت باندي ډير خوشحاله او ټينګ ولاړ يو، (وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا) [1].

**ترجمه : او کله چې مؤمنانو دکافرانو ډلې وليدلي ، وويې ويل: دا هغه څه دي چې الله تعالی او د هغه رسول يې مونږ سره وعده کړيده ، او الله تعالی او پيغمبر خپله وعده رينښتيني کړه ، او نه زياتوي دوي لره مګر ايمان اوتابعداري.**

---

(1 ) سورة الأحزاب (22).

# اول باب

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هجرت د ځاي (مدينې) ماهيت او صفت

د هغه کور او استوګنځي صفتونه او حالات څه وو؟ کوم ته چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له مکې معظمې څخه هجرت کړي وو، او هلته يې اولني اسلامې دولت جوړ او قائم کړي وو؟

امام احمد، بخاري، مسلم او ابن اسحاق رحمهم الله له عائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي هغه وايي: کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مدينې منورې ته لاړو،نو مدينه د الله تعالی په ځمکو کې ډيره وباوالا ځمکه وه ،او په ناوونو ،درو او ويالو کې به يې کنده او بدبويه اوبه بهيدلې، نو دهغې په وجه صحابه کرامو ته مرضونه اوتکليفونه پېښ شو، او الله تعالی له دغې مرضونو څخه رسول الله صلی الله علیه وسلم بچ ساتلي وو. [1]

او امام مالک رحمه الله په موطأ کې د عبدالله بن عمر بن العاص رضي الله عنه څخه روايت نقل کوي وايي: کله چې مدينې منورې ته راغلو، مونږ مريضان شو او ډير زيات دردمند او په کړاو شو ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم راووتو او خلکو

---

(1 ) هشام وايي : دمدينې وباء او مرضونه د جاهليت په مهال هم مشهور او پيژندل شوی وو، کومه دره به چې ډيره وباء والا وه، او څوک به پرې تيريدو يا به پکې او سيدو ،نوهغه ته وويل شو : د خر شانته اواز وکړه ،نو کله چې په هغه د خر اواز وکړو بيا به ورته دالله تعالی په امر مرض نه رسيدو ، يو شاعر چې کله مدينې ته راغې نو داسې يې وويل :

لعمري لئن عشرت من خيفة الردى **** نهيق الحمار إنني لجزوع .

زما دې قسم وي ، که زه چيرته د مرګ له ويرې دخر په شانته رمباړې او اوازونه وکړم ،نو زه خو بيا ډير بزدله حرصناک يم .

په ناسته د سهار لمونځ کولو ، نو هغه مبارک وفرمایل:(صلاة القاعد مثل نصف صلاة القائم)، د ناست لمونځ د ولاړ د لمونځ په پرتله نیم اجر او ثواب لري .

او په صحیح بخاري کې له عائشې رضي الله عنها څخه روایت نقل شویدي، چې کله بلال رضي الله عنه باندي د مرض درد سخت شو نو وېې ویل : یا الله د ربیعه په ځامنو، او په امیه بن خلف، باندي لعنت راولیږه، چې مونږ یې له خپلې ځمکې څخه د وباء او مرضونو ځمکې ته راشړلي یو، نو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې دعاء وفرمایله : «اللَّهُمَّ حَبِّبْ إِلَيْنَا المَدِينَةَ كَحُبِّنَا مَكَّةَ أَوْ أَشَدَّ، اللَّهُمَّ بَارِكْ لَنَا فِي صَاعِنَا وَفِي مُدِّنَا، وَصَحِّحْهَا لَنَا، وَانْقُلْ حُمَّاهَا إِلَى الجُحْفَةِ» .

**ترجمه: ای الله تعالی! زمونږ په زړونو کې د مدینې مینه او ګرانښت دمکې د مینې او محبت په شانته واچوه بلکې له هغې یې زیات کړه، یا الله زمونږ په پیمانو او وزنونو (خوراکې شیانو) کې برکت واچوه، او دا مدینه مونږ ته صحیح او برابره کړه، او د دې مرضونه جحفې ته نقل کړه.**

عائشه رضي الله عنها وايي: کله چې مدینې منورې ته راغلو د الله تعالی د ټولو ځمکو څخه ډیره د وباء او مرض والا ځمکه وه، او په بطحان نومې ځای کې به بدبویه او مرداري اوبه رواني وې. (1)

ابن بطال وايي: کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ولید چې صحابه کرام څومره د سختې مریضتیا او وباء سره مخ شو، نو دا سوچ ورسره پیدا شو چې هسې دا مدینه یې له پامه توره شي، ځکه کوم ځای چې د سړي بدي شي نو هلته پاتي کیدل او اوسیدل ورته ګران او ناشونې، نو ځکه یې له الله تعالی څخه دعاء وغوښتله چې

(1 ) او امام مالک په موطأ کې د یحیی بن سعید نه روایت نقل کړیدي ،چې عائشې رضي الله عنها ویلي دي:

عامر بن فهیره به ویلې: قد رأیت الموت قبل ذوقه ***** ان الجبان حتفه من فوقه .

یقینا ما مرګ مخکې د مرګ له څکلو ولیدو ، رښتیا چې په بزدله سړي مرګ د بره ګرځي .

له مدينې وباء ختمه او ليري کړي، او مدينه صحابه کرامو ته د مکې په شانته بلکې زياته ګرانه او محبوبه کړي .

نو دا د مدينې منوري تبې او مرضونه وو چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه کرام يې داسې ځپلې وو چې عائشه رضي الله عنها د خپل پلار او بلال بن رباح په باره کې وايي: ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل : دوي خو د مرض او تبې د سختې په وجه بېهوده خبري کوي، او په هيڅ شې نه پوهيږي.

خو له بل طرفه ځينو د مدينې وباء برداشت نه کړه او بيرته له اسلامه واوړيدل او مرتد شوه، په صحيح بخاري او مسلم کې روايت دي او لفظ دمسلم دي، چې د عُقل د قبيلې اته کسان رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغله او په اسلام کې د داخليدو لپاره يې ورسره بيعت وکړو، نو د مدينې منوري ځمکه وربانديبوج شوه او خوند يې ورنه کړو، او بدنونه يې ناجوړه شوه، او دبخاري په روايت کې د (فاجتبوا ) لفظ راغلي چې معنا يې ده : مدينه يې وکتله او ځايونه يې چاڼ او انتخاب کړه، او د احمد په روايت کې راغلي دي، چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغله او ورته يې وويل: مونږ مالونه (ګډي، چيلې او اوښان) ساتل، او دي ژوند سره عادت نه يو، او د مدينې د تبو او مرضونو څخه يې ورته شکايت وکړو.

او په صحیح بخاري کې د جابر بن عبدالله نه روایت نقل دي چې یو بانډه چې (کوچې او اعرابي) د رسول الله صلی علیه وسلم سره بیعت وکړو، نو کله چې ورته مرض ورسیدو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغې او ورته یې وویل:

زما بیعت بیرته مات او ما ترې خلاص کړه ، نو نبي علیه السلام ورسره ونه منله. (1)

د مخکنیو خبرو او واقعاتو څخه څرګندیږي، کومه ځمکه چې الله تعالی د خپل نبي علیه السلام د هجرت، او د خپل دین د خپریدو لپاره غوره کړی وه، په هغې کې مرضونه زیات او پاکې اوبه یې د نشت برابر وي، آن تردي چې دبلال بن رباح په شانته مشرانو صحابه وو له وباء او مرضونو څخه دومره سر تکولو چې دکومو کافرانو له لاسه دوي دي مدینې ته په هجرت کولو مجبور شوی وو هغویته یې خیرۍ (بدعایي) کوله، سره د دی چې دمشکلاتو او کړاوونو په ګاللو کې بلال ډیر

(1 ) او امام بخاري ، نسائي او امام مالک د دي حدیث د بیان نه وروسته د رسو ل الله صلی الله علیه وسلم دا قول ذکر کړیدي ( المدینة کالکیر تنفي خبثها وینصع طیبها ). مدینه د آهنګر د اور لګیدو او تیزولو د بوم په شانته ده ، چې ناپاکه او خبیث شیان ختموي، او پاک پاتي کوی، نو مدینه هم له ځانه ناپاکه خلک شړي. او امام بخاری بل روایت بیان کړي : چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ( أمرت بقریة تأکل القری یقولون یثرب وهی المدینة تنفي الناس کما ینفی الکیر الخبث) . ماته امر شوي ( داسی کلی ته د تللو ) چې هغه نور کلي خوري، هغې ته یثرب وایې، او هغه همدا مدینه ده ، داسې (ناکاره) خلک له ځانه شړي لکه څرنګه د دآهنګر بوم اوتوله له جواهرو ګندګې او بیهوده شیان لرې کوي.

برداشت والا وو ، خو دمديني د اول وخت سختې د ابوجهل دګرمو شکو او عذابونه څخه څو چنده زياته وه.

د دي ټولو ناورينونو (کړاوونو) باوجود هيچاته دا اجازت نه وو چي مدينه پريږدي او يا بيرته مرتد شي ، لکه څرنګه مو چي لږ مخکې د اعرابي او عُقل والا قصې ولوستلي.

اوس دا خبره د غور او سوچ ده چي د مديني په مرضونو او تکليفونو صبر کول د نيکمرغۍ او سعادت نښه وه او دا حکم او ځانګړتيا (امتياز) د رسول الله صلى الله عليه وسلم له وفات وروسته هم همداسي پاتي شو ، په صحيح مسلم کې د المهرى چي د ابوسعيد غلام وو روايت ذکر شوي، هغه وايي زه ابوسعيد الخدري ته دحري د واقعي په وخت کې راغلم ، او د مديني د پرېښودو د مشوري په څنګ کې مې ورته د نرخونو د زياتوالي او دبچو د ډيروالي شکايت هم وکړو ، او دايي هم ورته وويل چي نور دلته په تکليف، تنګسيا او غريبې صبر نه شم کولي، نو ابوسعيد ورته وويل : هلاک شې زه درته دا امر نه شم کولي ، ځکه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي چي فرمايل يي: (لا يَصْبِرُ عَلَى لَأْوَائِهَا وَشِدَّتِهَا أَحَدٌ، إِلَّا كُنْتُ لَهُ شَفِيعًا وْ شَهِيدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِذَا كَانَ مُسْلِمًا). [1]

---

(1 ) صحيح مسلم ، باب الترغيب في سكن المدينة والصبر على لأوائها (ج2/ص 1002)

**ترجمه: هر څوك چې د مديني منورې په سختيانو او تكليفونو باندې صبر وكړي ، نو زه د قيامت په ورځ د هغه سفارش( شفاعت) كوونكې او ګواه يم ، په دې شرط چې مسلمان وي.**

# دوهم باب

## د نبوي دولت اولنۍ امنيتي ، اقتصادي او عسکري حالات

### د نبوي دولت شروع او امنيتي حالت:

دنبوي دولت په اولنيو ورځو کې د صحابه کرامو ژوند د ډار ، ځان ساتنې ، دښمن ته د پيري کولو وخت اومرحله وه ، او خاصکر د نبوي دولت د جوړيدو په مهال کوم وخت چې د تکليف او کړاو ورځې وې، په صحيح بخاري کې د انس رضي الله عنه روايت راغلي هغه وايي:

كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْسَنَ النَّاسِ، وَأَجْوَدَ النَّاسِ، وَأَشْجَعَ النَّاسِ، وَلَقَدْ فَزِعَ أَهْلُ المَدِينَةِ لَيْلَةً، فَخَرَجُوا نَحْوَ الصَّوْتِ، فَاسْتَقْبَلَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ اسْتَبْرَأَ الخَبَرَ، وَهُوَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ عُرْيٍ، وَفِي عُنُقِهِ السَّيْفُ، وَهُوَ يَقُولُ: «لَمْ تُرَاعُوا، لَمْ تُرَاعُوا» ثُمَّ قَالَ: «وَجَدْنَاهُ بَحْرًا» أَوْ قَالَ: «إِنَّهُ لَبَحْرٌ»[1].

ترجمه : رسول الله صلى الله عليه وسلم له ټولو خلکو ډير ښائسته، ډير لاس کې خلاص (سخي) او ډير زړور او بهادر وو، يوه شپه دمدينې منوري خلك د يو اواز نه وويريدل، او د هغې اواز پسې راووتل، نو کله چې دوي روان شول نو رسول الله صلى الله عليه وسلم له هغې ځايه راستون شو او دوي سره مخ شو ، او ځان يې په حالاتو آګاه او خبر کړې وو، او هغه عليه السلام د ابوطلحه په يو شاتوري ( بغير د زين او کتې) اس سور وو، او توره يې په غاړه کې زوړند کړي وه، او صحابه کرامو ته يې دا الفاظ فرمايل : چې مه يريږی، مه يريږي، بيا يې وويل : داسی دبحر په شانته مزل کوي.

نو اواز پسې دخلکو تلل او وتل د دي معنی شوه چې هغه وخت له دښمن يره موجود وه ، او خلک د واړه خطر اګر که احتمالي او شکې هم وي لکه يوه غته تيره چې د غره

(1 ) صحيح صحيح البخاري ، باب اذا فزعوا بالليل (ج4/ص 66)

له سره راپريوزي، چې نن سبا د دښمنانو د دهماکو او چاودنو سره سمون خوري ، نو د دي دمعلومولو او ختمولو لپاره هم ټول صحابه کرام  په يوه چغه راوتل. [1]

نو همدا طريقه اوس هم پکار ده ، که چيرته اسلامي امت د جنګ په حالت کې وي، يا دښمن نژدي استوګن وي، چې دناګهاني او ناڅاپي حملي توقع او خطر تري کيدي شي، نو بايد چې د داسې خطرونو په اړه پوره سوچ وشي او بندوبست ورته ونيول شي، او ورڅخه بي پروا نه شي.

مهلب رحمه الله وايي: د رسول الله صلى الله عليه وسلم ويره د مشکل د رسيدو له وجې نه وه، بلکې د صحابوو د خيال ساتني په منظور وه ، ځکه هغه ته خو الله تعالى فرمايلي (وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ) او الله تعالى تا له خلکو ساتي  ،شر به درته نه شي رسولي.

دلته د امير او مشر لپاره يو ضروری او اړينه فائدي والا خبره شته، ابن بطال رحمه الله وايي: امير بايد خپل ځان دهلاکت ځاي ته ونه غورځوي، ځکه چې دي سره د مسلمانانو نظم او اتحاد ګډوډ او زيانمن کيږي.

له همدي کبله به رسول الله صلى الله عليه وسلم د مديني منوري په اولنيو وختونو کې ځانته څوکيداران مقررول او په پيره به يې ګمارل ،او مطلب يې له دښمن څخه ځان ساتنه او د اسبابو په کار اچول وو، خو کله چې د (**وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ**)  ايات نازل شو ، نو بيا يې د څوکيداري نظام ختم کړو، په صحيح بخاري کې دعائشي رضي الله عنها روايت دي هغه وايي : د رسول الله صلى الله عليه وسلم شبګير(بي خوبي) زياته شوي وه، نو کله چې مديني منوري ته راغي ويې فرمايل: **«لَيْتَ رَجُلًا مِنْ أُمَّتِي صَالِحًا يَحْرُسُنِي اللَّيْلَةَ»**. کاشکې زما د امت يو نيک او صالحه سړي وي چې نن شپه يې زما څوکيداري کړي وي، عائشه رضي الله عنها وايي : مونږ

(1 ) امام نووی رحمه الله وايي: له دي حديث څخه معلوميږي چې انسان د خبر معلومولو لپاره يوازی تلاي شي، خو په دي شرط چې دهلاکيدو احتمال پکې ډير نه وي.

داخبري كولي چي د اسلحې اواز(کړچار) شو، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وپوښتل **«مَنْ هَذَا؟»** دا څوک دي؟ هغه کس وويل: زه سعدبن أبي وقاص يم، بيا يي ورته وفرمايل : **«مَا جَاءَ بِكَ؟»** څنګه راغلي يی؟ ويې ويل : د دي په خاطر راغلي يم چي ستا پيره او څوکيداري وکړم . بيا رسول الله صلى الله عليه ويده شو، سعد وايې : داسې غرق ويده شو چي مايې خرار ( د ډوب خوبيدلي اواز). واوريدو.

معلومه شوه چې د دښمن څخه ځان ساتنه او څوکيداري ډيره ضروري ده ، دنسائي په روايت کې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کله مدينې منورې ته راغلو نو ډير وخت په بيدار وو او شپګير به يې زيات کولو .

نو دا زمونږ د پيغمبر صلى الله عليه وسلم حال وو چې له ډيرې څوکيداري ستړي شوي او د خوب په خوند نه پوهيدو او د څوکيدار ارمان يې کولو، د دي بل څه لامل نه وو غير له دي چې هغه مبارک به له دښمنه ځان ساتلو او ډير احتياط به يې کولو.

د هغه عليه السلام د ښې څوکيداري او ډير ويخوالي او بيداري نښه داده چې کله يې دشپې د اسلحې اواز واوريدو نو پوښتنه يې وکړه، او پخبله لاړو د اواز ځاي ته چې حقيقت معلوم کړي.

حافظ ابن حجر په فتح الباري کې وايې: له دي حديث څخه معلوميږي چې له دښمن نه ځان ساتنه، او څوکيداري کول ضروري دي، او په خلکو دا لازم دي چې د خپل مشر څوکيداري وکړي هسې نه چې څوک يې مړ کړي. او بله دا چې په حديث کې د څوکيداري او څوکيدار د ښېرې بيان او صفت شويدي، ځکه نبي عليه السلام ورته صالح سړي وويل، سره د دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ډير قوي، په الله تعالى اعتماد او باور لرونکې وو خو دا کار يې د دي په خاطر کولو چې خلک د هغه سنت عملي کړي او دا يې خلکو ته طريقه ښودله، ځکه خو به په سختو کې له هر چا مخکې وو ، او زغره به يې اغوستې وه، او توکل د دي کارونو سره منافي او په ټکر کې نه دي، توکل د زړه عمل او اسباب استعمالول او په کار اچول د بدن سره تړاو لري.

په مخکنیو دوه حدیثونو کې ډیري ګټې دي، چې دوه یکې ډیري ضروري دي:

اوله فائده : د حدیث د دغې برخې : (فَتَلَقَّاهُمْ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى فَرَسٍ لِأَبِي طَلْحَةَ، وَهُوَ مُتَقَلِّدٌ سَّيْفَهُ). څخه په ډاګه معلومیږي چې نبي علیه السلام به هر وخت د دښمن د مقابلي او دفاع لپاره تیار ا و اماده وو، او په ډیر لږ وخت به یې تیاري نیولو، اسلحه او جنګې سازسامان به یې لری او پټ نه ساتل، بلکې هر وخت به ورسره نژدي وو، ځکه خو په دې واقعه کې د اواز خواته په ډیره چالاکې سره له هر چا نه مخکې ځان تیار کړي او له ټولو مخکې رسیدلې او بیرته په راستنیدو کې ورسره صحابه مخ شول.

د امام شافعي رحمه الله پیروان په دې نظر دي چې د اسلحې ځان سره ساتل او ګرځول واجب دي او پریښودل يې حرام دي، او په تیره بیا کله چې د دښمن یره وی، او کله چې جهاد فرض عین وي نو د اسلحې ګرځول نور هم ډیر ضروری او حتمي واجب کار دي، الله تعالی فرمایي: (وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً) .سورة النساء (102)

**ترجمه: کافران خوښوي او غواړي چې تاسې له خپلو سلاحګانو او جنګې سامانونو څخه ناخبره او بې پروا شې، نو هغوی به په تاسې په یوا وار حمله وکړي.**

ابن کثیر رحمه الله وایې: د یرې د لمونځ په مهال اسلحه ځان سره نیول د ځینو علماوو په نیز واجب ده ، او دلیل یې دآیت ظاهري حکم دي، او دا د امام شافعي قول هم دی، او دا آیت دا حصه پرې امر کوي، (وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ كَانَ بِكُمْ أَذًى مِنْ مَطَرٍ أَوْ كُنْتُمْ مَرْضَى أَنْ تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ). سورة النساء (102).

**ترجمه : اونشته ګناه په تاسې که چیرته تاسې ته تکلیف وو د باران له امله او یا مریضان وي، چې اسلحه کیږدي، خو خپله ځان ساتنه او دښمن ته ځیر کیدل پکار دي.**

قرطبي رحمه الله وايې: د ظاهريانو مذهب دادي چې د يري د لمانځه په مهال اسلحه ځان سره نيول واجب دي، خو كه چيرته د باران ويره وي نو بيا يې كيښول جواز لري.

ابن عربي وايې: كله چې لمونځ كوي نو بيا دي اسلحه واخلې ، او دا د امام شافعي دوهم قول دى، او د قرآنكريم د الفاظو ظاهري معنا هم د دي تقاضا او غوښتنه كوي.

د ابن عربي د خبري څخه داسې معلوميږى چې د ويري په صورت كې اسلحه نيول د لمانځه په مهال واجب دي او د لمانځه نه به غير خو ډير واجب او لازمي دي، ځكه چې په لمانځه كې د اسلحې د نيولو سره يو څه ناڅه حركت او دهغې ځان سره ښكته پورته كول راځي نو چې په لمونځ كې د دښمن نه د ځان ساتنې په منظور واجب دي، نو د لمانځه څخه بغير حتما واجب دي.

قرطبي رحمه الله وايې: دا دي خبري دليل دي چې په هر وخت او هر حالت كې د دښمن د مقابلې لپاره تياري او امادګې نيول،او ځان ورڅخه ساتل، او نه تسليميدل ډير ضروري دي، ځكه چې كله هم لښكر د ناكامې سره مخ كيږى نو سبب يې د ځان ساتنې څخه غفلت اوبې پروايي وي.

ضحاک رحمه الله د (وَخُذُوا حِذْرَكُمْ) په تفسير كې وايې: چې خپلې توري ځان سره ونيسې ځكه چې دا د غازيانو نښه ده .

## اى مجاهدينو !!

د الله تعالى څخه و ويريږئ، او خپلې اسلحې پټو ځايونو كې مه ساتئ ، ځكه چې تاسې په فرض عين جهاد كې اخته او مصروف يې ، او ديته تياري نيول په هر وخت او هر حالت كې واجب دى، او اكثره مجاهدين د اسلحې د نه ګرځولو په وجه بندي او د دښمن په ولقه كې راشې بيا يې بهانه امنيتي حالات وي، او مجاهد ته پكار ده چې د ځان سره داسې اسلحه ګرځوي چې فائده يې زياته او وزن يې كم وي لكه د لاسې ګرنيټونو ګردنې او چانته، او يوه سپكه كلاشينكوف يا تومانچه .

دويمه فائده: د حديث د غه برخه «لَيْتَ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِيْ صَالِحًا يَحْرُسُنِي اللَّيْلَةَ».
د دي غوښتنه او اهميت بيانوي چې ډيره کول ډيره ګټوره او بهترين کار دي، ابن عباس رضي الله عنهما وايي: چي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دی:

"عَيْنَانِ لَا تَمَسُّهُمَا النَّارُ: عَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ وَعَيْنٌ بَاتَتْ تَحْرِسُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ". مسند الامام أحمد (ج 28/ص 447).

**ترجمه : دوه سترګو ته به د جهنم اور نه رسيږي ، يوه هغه سترګه چې د الله تعالى د يري څخه ژاړي، او بله هغه سترګه چې د الله تعالى په لاره کې د شپې څوکيداري کوي.**

او امام حاکم د ابن عمر رضي الله عنهما روايت نقل کړي هغه وايي : رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

«أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِلَيْلَةٍ أَفْضَلَ مِنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ؟ حَارِسٌ حَرَسَ فِي أَرْضِ خَوْفٍ، لَعَلَّهُ أَنْ لَا يَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهِ». شعب الايمان كتاب الجهاد (ج6/ص 99)

ترجمه : آيا زه تاسي ته د داسي شپې باره کې خبر درنه کړم چي هغه د زر ليلة القدر څخه غوره او بهتره ده ؟ د هغه څوکيدار شپه چې د ويري او دښمن په ځمکه کې يې شپه تيره کړي وی، د دي يره او سبب وي چې کيدي شي کور ته تري روغ رانه شي.

او عثمان بن عفان رضي الله عنه وايي، ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي دي داسي يې فرمايل :

"حَرَسُ لَيْلَةٍ فِي سَبِيلِ اللهِ تَعَالَى أَفْضَلُ مِنْ أَلْفِ لَيْلَةٍ يُقَامُ لَيْلُهَا، وَيُصَامُ نَهَارُهَا" مسند الامام احمد (ج 1/ ص 488)

د الله تعالى په لاره کې د يوي شپې څوکيداري د زورو هغو شپو څخه غوره او بهتره ده چي د شپې پکې ټوله شپه تهجد لمونځ کوي او د ورځي يې روژه نيسي.

او د امام احمد په روايت کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم داسې فرمان هم راغلي دي:

" مَنْ حَرَسَ مِنْ وَرَاءِ الْمُسْلِمِينَ فِي سَبِيلِ اللهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى مُتَطَوِّعًا، لَا يَأْخُذُهُ سُلْطَانٌ، لَمْ يَرَ النَّارَ بِعَيْنَيْهِ، إِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ فَإِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَقُولُ: {وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا" . سنن ابن ماجه (ج 1/ ص 512).

ترجمه: څوك چي د الله تعالى په لاره د تنخوا او دنيايي غوښتنو څخه پاکه څوکيداري د مسلمانانو په داسې حال کې وکړی چي بادشاه په زوره نه وی بوتلي نو دغه انسان به اور په سترګو ونه ګوري، مګر هماغه کتل به وي په کومو چي د قسم پوره کول راځي چي الله تعالى فرمايلي دي، او هرڅوك به ستاسي د جهنم( په سريعنى پُل صراط) تيريږي.

او په صحيح بخاري د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا مبارک ارشاد راغلي دي:

طُوبَى لِعَبْدٍ آخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، أَشْعَثُ رَأْسُهُ، مُغْبَرَّةٌ قَدَمَاهُ، إِنْ كَانَ الْحِرَاسَةُ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ، وَإِنْ كَانَتِ السَّاقَةُ كَانَ فِي السَّاقَةِ، إِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ، وإِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ». صحيح ابن حبان ( ج 5/ ص 460)

ترجمه : ډير خبر وبرکت، جنت يا د جنت ونه ده هغه بنده لره چي د خپل اس واګې يي د الله تعالى په لاره کې نيولي وي، او جهاد پري کوي، د سر ويښتان يي ګډوډ نا ګومنځ شوی، قدمونه يې په دوړو ککړ وي، که چيرته په پيره مقرری کړي شی، نو پيره کوي، او که چيرته د لښکر شاته مقرر وی نو هماغلته وي، که د چا سفارش (شفاعت) کوي شفاعت يې څوك نه قبلوي او که د څه اجازت غواړي اجازت څوك نه ورکوي.

نو هر مجاهد ته پکار ده، چي کله هم دوه يا ډير کسان په کوم ځاي کې شپه تيروي او ويده کيږي، نو ملګري دي د پيري لپاره نوبت جوړ او په وار وار دي پيره کوي، ځکه چي جهاد او جنګونو کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم همدا سنت او طريقه وه، ځکه خو اسلام امر کړيدی چي له ماسخوتن څخه وروسته سمدلاسه ويده کيږی او

خپل وخت چتې او بيهوده مه ضائع کوئ ، په بخاري او مسلم کې حديث دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به له ماسخوتنه وروسته خبرې کول بد ګڼل، او له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه دا نقل دی چې هغه به خلک له ماسخوتنه وروسته په خبرو باندې وهل، او ويل به يې: ( أسمرا أول الليل ونوما آخره). آيا د شپې په اول کې نه ويده کيږې(شبګير او بې فائدې خبرې کوې) او بيا په اخره حصه دشپې کې خوب کوې.

او په دې کې هيڅ شک نشته چې د الله تعالى په لاره کې پيره کول عين رباط دې، ځکه چې د رباط معنى د داسې ځاې ځوکيدارى کول دی چې هلته دښمن له تا او ته له دښمن څخه يريږې، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

«رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ خَيْرٌ مِنْ صِيَامِ شَهْرٍ وَقِيَامِهِ، وَمَنْ مَاتَ أُجْرِيَ عَلَيْهِ عَمَلُهُ الَّذِيْ كَانَ يَعْمَلُهُ،وَأُجْرِيَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ، وَأَمِنَ الْفَتَّانَ» صحيح مسلم (3/ص 1520)

**ترجمه : دسنګر يوه شپه او ورځ پاتې کيدل او تيرول دالله تعالى په لاره کې د يوې مياشتې د ورځې د روژې او دشپې د تهجدو څخه بهتره ، او که چيرته دا سړى مړ شو نو د همدى عمل اجر به يې دوامداره وی، او رزق به ورکول کيږي ، او له فتنو ، د قبر د عذاب او نکير منکر څخه به په امن کې وي.**

بل ځاي فرمايي: ( رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا). مسند الامام احمد (ج 1/ ص 516).

**ترجمه : يوه ورځ د الله تعالى په لاره کې د سنګر پاتې کيدل له ټولې دنيا او څه چې په دې دنيا کې دي غوره او بهتر دي.**

ای موحده مسلمانه !! د خپل ځان او ملګرو د پيرې په باره کې ناراستې او بې پروايي مه کوه، يقينا مونږ ته د دې کار ډير بد انجامونه او ورڅخه پيدا مصيبتونه او

کړاوونه معلوم دي، چي د پيري په نه کولو سره مينځ ته راځي، نو دالله تعالی څخه ويريږي او د رسول الله صلی الله عليه وسلم دا سنت شاته مه غورځوئ.

## په نبوي دولت کې اقتصادي حالت

د نبوي دولت د اقتصادي حالت[1] باره کې ويلو شو چې نبوي دولت د نوي جوړيدو په مهال د ډيري سختې غريبې په مرحله کې وو، له دي غريبې او کړاوونو هيڅوک نه غښ او نه وړوکې بچ او خوندي وو، بلکې هر چا د غريبې خوند او تريخوالى څکلى وو، په صحيح بخاري کې ايوب له محمد او هغه له ابي هريره رضي الله عنه څخه روايت کوي، چې د هغه د کتان د ټوټې( تکه، کپړه) په سور قيمتې رنګ ښائسته شوي جامې اغوستې وي ، نو پوزه يې پري پاکه کړه ، او بيا ابوهريره وويل : ډيره د تعجب خبره ده چې ابوهريره  د کتان په جامو پوزه سوڼ کوي (پاکوي)، زه به د رسول الله صلى الله عليه وسلم د منبر او دعائشې رضي الله عنها د کوټې ترمينځ بيهوشه شوم، او خلک به راتلل او زما په څټ به يې پښه کيښوده چې دا ليونې شويدي، او زه به ليونې نه ووم زه به لوږي دي حالت ته رسولې ووم.

دا عزتمند ميلمانه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په جومات کې ټولو صحابه کرامو ليدل او بيا به هم دوي د لوږي له سختې او ډيروالي له امله بيهوشه کيدل، هيچا ورته د خوراک بندوبست نه شو کولې.

او ابوهريرة رضي الله عنه وايې د مسکينانو په حال جعفر رضي الله عنه ډير خبر او معلومات لري ځکه چې هغه به مونږ کورته بوتلو او کور کې به يې چې څه وو هغه به

---

(1 ) په دي کې په هغه چا رد دې چې زمونږ  په مجاهدينو ورونو باندي د اسلامې دولت د اعلان په باره کې اعتراض کوي ، او وايې :دولت ته پکار ده چې خلکو ته خوراک، څښاک ، تعليم ، علاج برابرکړي ، او له دي شيانو څخه يې د اسلامي دولت د قائميدو ارکان او بنستونه جوړکړل ، چې له دي بغير اسلامي دولت مينځ ته نه شې راتلاي.

نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه کې د خلکو حالت د عراق د  اسلامي دولت د حالت سره يو شانته او نزدى دى ، بلکې د نبي عليه السلام په وخت په خلکو له دي ډيره سختي وه ، او کلک عزم او هوډ ، ثابت قدمې ، او د الله تعالى په کومک يقين کولو سره نصرت راځي او مشکلات ختميږي.

يې په مونږ باندي خواږه، آن تردي چې كله به يې په كور كې څه نه وو نو د غوړيو هغه ككړه خلته او بوجكې به يې راته راوويسته او مونږ به هغه په ګوتو راتوګله او څټله به مو.

اى په هرقسمه نعمتونو کې لتاړ او د ژوند په ټولو وسائلو پوره مجاهده !! سوچ وكړه چې يو عزتمند او سخي جعفر رضي الله عنه خپل قدرمن ميلمانه كور ته راولي خو په كور كې يې يوائې د خرمني هغه بوجكې(لفافه) شته چې يوائې د غوړو اثر پکې شته نور څه نه، او بيا هغه ميلمانه دا كڅوړه شلوي په څټلو او په ګوته راتوګلو ورڅخه فائده اخلې، او حال دا چې دا د هجرت د اووم كال نه وروسته خبره وه ځكه چې ابوهريره رضي الله عنه په اووم كال کې ايمان راوړي او جعفر رضي الله عنه هم په اووم كال کې له حبشې څخه راغلو، نو معلومه شوه د غريبې سختې د نبوي دولت تر اووم كاله پوري اوږده او غزيدلې وه ،چې بيا الله تعالى د خيبر غنيمتونه او داسې نور مالي موارد مسلمانانو ته وركړه .

او داسلام د ميلمنو او د هغوي د لوږې په باره کې دا قدرمن صحابي – أبوهريره- د خپل ځان په هكله وايي: زه به مشرانو صحابه وو سره د يو قرآني آيت د معنا او مقصد په بهانه كيناستم چې ماته خوراک راكړي، وايي: (ماسألته الا ليشبعني) ما يوائې د دې لپاره پوښتنه كوله چې موړ مې كړي، يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم راوغوښتم، نو هلته مې د هغه په كور کې شودي (پې) وليدو چې چا ورته تحفه کې راوړې وې، نو ماته يې وويل: (يا أباهر) اى ابوهريره! ما ورته وويل: حاضر يم يا دا لله تعالى رسوله، ويې فرمايل: " اِلْحَقْ إِلَى أَهْلِ الصُّفَّةِ، فَادْعُهُمْ لِي "

لاړ شه اهل صفې والا ته ، او ماته يې راوغواړه او رايې وله، او اهل صفه دا هغه غريب صحابه وو چې نه يې كور، او نه يې مال او نه يې نور څوک وو، كله به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته صدقه راغله نو هغه به يې همدې اهل صفه والا ته ليږله، او كله به چې ورته هديه او تحفه راغله نو له هغې څخه به يې خپله هم خوړله او هغوي به يې هم پکې شريكول،أبوهريره وايي : دهغوي په راغوښتلو خفه

شوم او ځان سره مې وويل: دا لږي شودي دي،دهغوي پري هيڅ نه کيږی ، زه ډير حقدار يم چې دا وڅښم، او بدن کې مې څه زور او طاقت راپيداشي ،او که اهل صفه والا راشي نو نبي عليه السلام به ماته وايې چې دا پري تقسيم کړه او هغوي ته يې په نمبر نمبر ورکړه، نو ماته به په کې څه پاتې شي، خو د الله تعالی او د رسول الله صلی الله عليه طاعت او خبره منل هم ډير ضروري وه ، نو ورپسي لاړم[1] ........ الحديث

دلته د ايثار چې معنا او مقصد يې بل مسلمان د خپل نفس څخه په ګټه رسولو ، دفاع کولو او .... څخه مخکې کول او ځان وروسته کول دی، د دي يو ښکاره مثال دي ، نو هر مسلمان ته پکار ده چې همداسې خوي په کې راشې ، او د سختې او تکليفونو په مهال دملګرو سره داسې چلند وکړي، ځکه چې ايثار د دي لپاره راغلي

---

(1 ) دا حديث بخاري روايت کړيدي. او پوره حديث داسې دي:

ابوهريره وايې: ورپسي ورغلم ، دعوت مې ورکړو ، راروان شو، راورسيده ، اجازت يې وغوښتو ، اجازت ورته وشو، ټول د پيغمبر کور کې په خپل خپل ځاي کيناستل، ماته رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: (يا أباهر) ای ابوهريره ! ما وويل : حاضر يم يا دالله تعالی رسوله ! ويې فرمايل: ( خذ فأعطهم)، واخله دا لوښې او دا شوده دويته ورکړه، لوښې مې راواخيستو ، او په وار وار مې يو يو کس ته د شودو جام ورکولو هغوي به څښلې او لوښې به يې بيرته راکولو، بيا به مې بل ته ورکړو ، ترڅو ټول کسان په شودو ماړه شوه ، نو بيا مې اخره کې لوښې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ويورو ، هغه مبارک لوښې په لاس کې ونيولو او ماته يې وکتل او په موسکا شو ، بيا يې راته وويل : ابوهريره ،ماورته : وويل : حاضر يم امر کوئ، هغه وويل: ( بقيت أنا وأنت) ، زه او ته پاتي شو، ما وويل: همداسې ده، خبره دي رښتيا ده، راته يې وويل: ( اقعد فاشرب) کينه وڅښه، کيناستم ومې څښلې ، بيا يي راته وويل ، وڅښه ، بيا مې وڅښلې ، بار بار يې راته د څښلو حکم کولو ، آخر مې ورته وويل : قسم په هغه الله تعالی چې ته يې په حقه پيغمبر راليږلي يې، نور راکې ځاي نشته ( پوره موړ شوم) ، بيا يې راته وويل: لوښې ماته وښايه ، لوښې مې ورته وکړو ، هغه عليه السلام ، د الله حمد وويلو ، اوبيا يې بسم الله وويله ، او ځمونږ څخه پاتي يې وڅښلې.

چې د مسلمانانو ډله مضبوطه او مټ يې قوي شې ، الله تعالى فرمايې: (وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ). سورة حشر (9)

**ترجمه : او په خپلو ځانونو لاس نيوي کوي اګر که ډيره لوږه ورباندي هم وي.**

دا د اسلام شاهسوار، درسول لله صلى الله عليه وسلم زوم او د تره ځوي علي بن أبى طالب رضي الله عنه د يو يهودي سره د يو څو خرماوو په مقابل کې مزدوري د دي په خاطر کوله چې خپله لوږه پري ختمه کړي، په ترمذي کې داسې روايت راځې، وايي: د رسول الله صلى الله عليه وسلم د کور څخه د ژمې په يخه ورځ کې راووتم، او يو بې كاره وچه څرمن مې له ځان سره واخسته، هغه څرمن مې په دي بل مخ کړه او سر مې پکې د ننه کړو، او نوره مې شا پوري د خرما د ونې په پوټکې کلکه وتړله، او په دي وخت ښه سم وږي شوی يم ، که د رسول الله صلى الله عليه وسلم په کور کې د خوړلو څه وو، نو ما به خوړلي وو ( بلکې نه وو) ، له کوره ووتم ، چې څه پيدا کړم، ګورم چې يو يهودي په خپله کرونده کې لګيا دي او د لرګي په يوه بيلچه باندي يې فصل ( کرونده) اوبه کوله ، نو ما ورته د ديوال په سورى کې وکتل ، نو هغه راته وويل: اعرابي (باندې چې) څه کوي؟ چې په يوه بوکه اوبو راويستو درته يوه خرما دانه درکړم کار کوي؟ ما ورته وويل: هو ،دروازه خلاصه کړه چې درشم، دروازه يې خلاصه کړه، وردننه شوم. بوکه يې راته راکړه، نو كله به مې چې له کوهې څخه بوکه راويسته نو يوه دانه خرما( کهجوره) به يې راکوله، يو څو بوکې راويستو نه وروسته مې لاس له خرماوو ډک شو، بوکه مې ورته پريښوده،ما ورته وويل: دا مې بس دي، هغه مې وخوړلې ا وبيا مې ورپسې اوبه وڅښلې.

اوس د لوږي يو بله واقعه واوره چې له ډيره درده زړه دردوي، ابن عباس رضي الله عنه وايې: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د يو مريض پوښتنې ته لاړو، او ورته يې وفرمايل: ( ماتشتهې) څه ته دي زړه کيږي؟ هغه ورته وويل: دغنمو ډوډې ته مې ډيره

اشتها کيږي. نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: **(من كان عنده خبز بر فليبعث الى أخيه)** . چا سره چې د غنمو ډوډي وی، نو خپل دي ورور ته دي وليږي.

خو کله چی لوږه په ورو بچو ولګيږي ، نو دا قسم په الله چې ډيره سخته تماميږي، په ابوداود کې دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه څخه روايت نقل شويدي چې يوه ورځ کور ته فاطمې رضي الله عنها ته ورغې، نو ګوري چې حسن او حسين ژاړي، پوښتنه يې وکړه : دا ولې ژاړي؟ هغې ورته وويل : د لوږي نه ژاړي.

او په ترمذي کې د رافع بن عمرو قصه ده چې هغه د انصارو د خرما ونه ويشتله ، نو انصاري ورپسې راغي او رافع يې ونيوو،او رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې راوستو ،نبي عليه السلام ورته وفرمايل: **(يا رافع لم ترم نخلهم)** ای رافعه ولې د دوي د خرما ونه ولې؟ رافع وايي: ما ورته وويل: ای د الله رسوله ! د لوږي له امله .

له بل طرفه د اغوستو لپاره د جامو او د عورتونو د پټولو لپاره د ټوټو او کپړو نظام يې د خوراک څخه هم ډير کمزوري وو ، په صحيح بخاري کې راغلي : يو صحابي له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه يوه جامه کې د لمونځ کولو په باره کې پوښتنه وکړه، نو هغه ورته وفرمايل: **(أَوَ لِكُلِّكُمْ ثَوْبَانِ)** ايا ستاسو ټولو دوه دوه جامې شته؟! يعني يوه د لنګ پرتوګ او بله د قميص لپاره، او بيا خو به دا يوه جامه هم اکثره وخت لنډه او تنګه وه، چې د لمانځه په مهال به پري د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مسجد کې د صحابې عورت نه پټيدو ، سهل بن سعد وايي: ځينو خلکو به د رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې لمونځ اداء کولو ، او جامې به يې د ماشومانو په شانته څټ پوري نښتې وي، نو ښځو ته به داسې حکم کيده چې له سجدې تر هغې سرونه مه اوچتوئ ، ترڅو چې دنارينه وو صف پوره را اوچت شي او کينې.

ابن بطال وايي: امام طحاوي د دې باره کې ويلي چې د دغو صحابه وو نوري جامې نه وي ځکه يې دا د څټونو پوري ترلي وي. ځکه که نوري جامې يې وي نو هغه به يې اغوستې وي ، او ښځو ته به د وروسته راپاڅيدو د حکم ضرورت نه وو، ځکه چې دا کار په خپله د دې حديث خلاف دي **( فلاتختلفوا عليه )** او **( فاذا رفع فارفعوا)** .

چې د امام مخالفت مه کوي د هغه د تکبیر او اواز سره سمدلاسه ښکته پورته کیږئ، نو دا حکم زنانه وو(ښځو) د ضرورت په بناء مات کړو.

وګوره چې عمرو بن سلمه کله خپل قوم ته لمونځ ورکولو او امامت یې کولو نو د جامو د لنډوالې له کبله یې عورت ښکاریدو ، بیا کله چې هغه ته لویه چپنه واخستل شوه، نو هغه وایې: په دې چپنه دومره خوشحاله شوم چې په بل هیڅ شي دومره نه یم خوشحاله شوي.

نو معلومه شوه چې په برني واقعه ښځې مخکې د سر اوچتولو څخه د دي په خاطر منعه شوي وی هسې نه چې د نارینه وو عورتونه ورته ښکاره نه شي.

نو آیا د دي فقر او غریبې نه نور فقر وی؟ د لوږي په سختوالی باندي انسان صبر کولي شي ، خو د عورت په ښکاریدو او د پټولو لپاره د څه نه پیداکیدو دا ډیره سخته او دردناکه خبره ده، او بیا خو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حالات ګوري او هیڅ وس او توان یې نه رسیږي چې له صحابه وو لوږه لری او یا ورته د جامو بندوبست وکړي، نو دا هم ډیره سخته او تکلیفي ساحنه ده .

او د موحد او سوچه مسلمان سترګې چې نمجني کوي، او اوښکې تري تویوي، هغه دا خبره ده چې د لوږي او نورو سختیو څخه د الله بهترین مخلوق، عزتمند او شرف والا پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم هم مستثنی او خاص نه وو ، په صحیح مسلم کې د انس بن مالک روایت دي وایې: یوه ورځ د رسول الله صلی الله علیه وسلم خواته راغلم، او هغه مبارک د صحابه کرامو سره ناست وو، خبري یې ورسره کولي، او خیټه یې په پټې (ټوټه) باندي تړلې وه ، نو ما د صحابه وو نه پوښتنه وکړه ، دا ولې؟ هغوي راته وویل: د لوږي له امله .

او بل روایت کې راغلي چې : ابو طلحه رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدو چې په جومات کې ملاست وو اړخ په اړخ اوختو ، نو ام سلیم (خپلې ښځې) ته راغې او ورته یې وویلي: رسول الله صلی الله علیه وسلم مې ولیدو چې جومات کې یو خوا بل خواته اوړیدو ، او زما ګومان دي چې هغه باندي لوږه زیاته شویده، انس وایې: ابوطلحه زما

مور ته راغې او ورته یې وویل: آیا څه شته؟ هغې ورته وویل: هو د ډوډۍ یو څو ټکړې(نیمه نیمه ډوډۍ) او یو څو خرما دانې شته، که رسول الله صلی الله علیه وسلم یواځې راشي نو مور به شي او که بل څوک ورسره راغلو، نو بیا به دا خوراک کم شي.

نو سوچ وکړه ای شکایت کوونکیه!! چې هر وخت وایې: حالات خراب دي، ژوند تنگ دي، ستا خوړ پیغمبر علیه السلام ته څومره سخته لوږه رسیدلی وه؟! چې د هغې نښې او اثر د هغه په مخ مبارک کې ښکاریده، بلکې د لوږې له سختې اړخ په اړخ اوړیدو،او هیڅا سره دهغه د میلمستیا توان نه وو چې په نبي علیه السلام باندي څه وخوري، او بیا کله چې د أم سلیم کره خوراک پیدا شو ، نو داسې د ډوډې ټکړې وې چې د پیغمبر په شانته د معزز او قدردان میلمه لپاره مناسب نه وې.

او رسول الله صلی الله علیه وسلم ډیرې شپې همداسې په نهاره تیرې کړې وې. ابن عباس رضي الله عنهما وایې: رسول الله صلی الله علیه وسلم به سرپه سر ډیرې شپې همداسې بې خوراکه څملاستو او په کورکې به یې د خوراک څه نه وو، او اکثره خوراک به یې د وربشو ډوډوې وه.

ای دمسلمانانو او خاصکر د مجاهدینو بیبیانو چې تاسې د خپلو خاوندانو نافرمانې او ناشکرې د پراخه او مزو د ژوند په هکله کوې، دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لورگانو او بیبیانو او د مسلمانانو دمورگانو حال او ژوند وو، په صحیح مسلم کې د ابوهریره رضي الله عنه روایت دي وایې: زما دي قسم په هغه الله تعالی وې چې د ابوهریره نفس د هغه په لاس کې دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرگ تر ورځې پورې خپله کورنۍ درې ورځې سر په سر د غنمو په ډوډې نه دي ماړه کړې.

دا خو لا څه کوې چې د وربشو په ډوډې یې هم نه دي ماړه کړې، امام بخاري د ابوهریره رضي الله عنه روایت ذکر کوي هغه وایې: رسول الله صلی الله علیه وسلم له فانې دنیا سترگې پټې کړې، خو تر آخرې ورځې د وربشو په ډوډې موړ شوی نه وو.

او  د نورو هغو ناخوالو په لړۍ کې چې له زړه ورته وينې خاڅي، او انسان يې د تصور کولو طاقت هم نه لري، هغه دا چې ستا خوږ نبي عليه السلام ډيري لوږي دومره وځپلو چې د يو ناچيزه خوراک لپاره د يهودي  دعوت قبليدو ته مجبور شو، بلکې خپله زغره (جنګې اوسپنيزقميص) يې يهودي ته ګانه کې کيښوده تر څو ورڅخه د خپلې کورنۍ د خوراک لپاره وربشې واخلي.

په صحيح بخاري د انس رضي الله عنه روايت دي ، انس رضي الله عنه وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم ته مې د وربشو ډوډي او زړه (پخواني) وازده وروړه، او دهغه مبارک زغره د يهودي سره په شلو پيمانو وربشو کې ګانه وه،چې د خپلې کورنۍ د خوراک لپاره يې ورڅخه اخستې وې ، انس رضي الله عنه وايي: يوه ورځ مې ورڅخه واوريده چې فرمايل يې: **(ما أمسى فى آل محمد صاع تمر ولاصاع[1] حب)**. د محمد صلى الله عليه وسلم په (ټولو نهه واړه کورونو او ښځو کره ) نه يوه پيمانه خرما شته او نه يوه پيمانه دانې (غنم، وريژې،وربشې او جوار) [2].

حافظ ابن حجر په خپل کتاب فتح الباري کې د دې حديث لاندې وايې: رسول الله صلى الله عليه وسلم دا خبره د دې لپاره نه دې کړې چې – والعياذ بالله – له الله تعالى څخه ناراضه يا يې شکايت کولو ، بلکې د دې په خاطر کې کړې وه چې له يهودي څخه د وربشو د اخستو ضرورت، او د دې کار د کولو راز صحابه کرامو ته ووايې.

هو! رسول الله صلى الله عليه وسلم د يهودي  هغه دعوت چې وربشې او د وخته تيره وازده پکې وه د لوږې د سختې له امله قبول کړو، او همدغې لوږې او سخت ضرورت ديته هم مجبور کړو چې خپله اسلحه او زغره ګانه کړي، او هغه هم د يهودي سره

---

(1 ) يوه صاع يعني پيمانه څه دپاسه دوه کيلو وزن کيږي.

(2 ) د نبوي دولت د امير او بنياد ايښودونکې کې دا حالت دي، نو که نن سبا د جهادي مشرانو حال د غسي ى غريبي وي، نو د ا څه د عيب خبره نه ده.

چې د هغه مال د حرام او شکمن په مینځ کې وي، څکه الله تعالی د هغوي باره کې فرمايي: (سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ أَكَّالُونَ لِلسُّحْتِ) سورة المائدة (41)

ترجمه: ډير دروغ اوريدونکي او ډير حرام خوړونکي دي.

که چيرته رسول الله صلی الله عليه وسلم د هر يو مسلمان سره د قرض اخستو څه پيداکولي شو، نو خامخا به يې له هغه اخستې او يهودي به يې پريښې وو.

حافظ ابن حجر وايي: علماوو ويلي دي: د يهودي څخه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د قرض اخستلو او له صحابه وو څخه د نه اخستلو حکمت دا دي چې خلکو ته وښايي چې دا روا کار دي،او يا د دي په خاطر يې له يهودي اخستې وو چې مسلمانان غريبان وو هيڅ ورسره نه وو. او يا په دي خاطر هغوي به ورته مفت او خوشې ورکولو نو نبي عليه السلام په هغوي تنکسيا پيرزو نه وه نو څکه يې له هغوي وانه خستو.

زه وايم : دا ناممکنه ده چې رسول الله صلی الله عليه وسلم خپله اسلحه د يهودي سره ګانه کړي، نو حتما داسې حالات وو چې ډير سخت او بله هيڅ چاره نه وه، نو څکه يې دا کار وکړو.

لنډه دا چې همدا څمونږ لپاره د عبرت خبره ده چې رسول الله صلی الله عليه وسلم خپله زغره د يهودي سره د ديرش پيمانو وربشو په مقابل کې چې د خپل کور د خوراک لپاره يې تري اخستې وي، ګانه کړې وه، د امام احمد په روايت کې راځي چې نبي عليه السلام سره څه نه وو چې خپله زغره پرې راخلاصه کړي.

## لنډيز ، او په نبوي دولت کې شاهد :

دا د نبوي دولت حالت وو د شروع او بنسټ څخه د رسول الله صلی الله عليه وسلم تر وفات پوري، ټولو ته داسې سخته لوږه او تکليف رسيدلي وو،چې په چا لوږه نه وي راغلي هغه د دي حالت په سختي نه پوهيږي، خو د دي هر څه سره هيڅ يو مسلمان لا څه چې منافق هم د دي دولت باره کې د عيب او نقصان خبره نه ده کړي، چې نبي عليه السلام سره خو د خپل ځان او صحابه وو لپاره خوراک، څښاک

نه وو ، نو هغه څنګه ځان په تنګه کې راګیر کړي، او دولت یې اعلان کړي او جوړ کړی وو؟ سره د دي چې هغه سره د دولت د جوړیدو وسائل نه وو، او تر ټولو کمه وسیله خوراک اوڅښاک دي.

# په نبوي دولت کې عسکري حالت

د لښکرو د تیاري لپاره حالات سازګار او برابر وه که نه؟ آیا د مخکې په شانته مشکلات په دي طرف کې هم وو؟ او که نه عسکري اړخ له مدني طرف نه ښه وو؟ په بخاري او مسلم کې د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما روایت دي وایې: رسول الله صلى الله علیه وسلم د بحر غاړي ته د ابوعبیده رضي الله عنه د مشري لاندي د دری سوه کسانو یو ګروپ ولیږلو، چې زه هم پکې ووم، مونږ روان شو ، کله چې نیمایې لاري ته ورسیدو نو توښه او خرچه خلاصه شوه، نو ابوعبیده امر وکړو چې ټول خلک خپلې توښې او خوراکې مواد راجمع کړئ، نو بیا به یې هره ورځ له هغې څخه لږي لږي خرما راکولي، بیا هغه هم کمې شوي نو هره ورځ به یې راته د خرما یوه یوه دانه راکوله، نو ما ورته وویل: په دي یوه خرما خو ګذاره نه کیږي، هغه راته وویل: چې دا خلاصې شې بیا به د دي یوي په قدر پوه شې او ارمان به یې کوي.

په بل روایت کې راځې: مونږ دري سوه کسان روان شو، او خپل خوراکې او نور سامانونه مو په اوږو اینې وو، او دمسلم په روایت کې راغلي: چې مونږ ته یې یواځې یوه بوجې خرما راکړي او نور څه نه وو (بیت المال کې)، نو ابوعبیده به مونږ ته د ورځې یوه دانه خرما راکوله، راوي وایې: ماتري وپوښتل: ایا په دي ستاسې ګذاره کیدله، هغه راته وویل: مونږ هغه داسې څټله او رودله لکه ماشوم چې د خوراک څیز څټې، بیا به مو ورپسې اوبه څښلې، نو تر شپې پوري به یې ګذاره کوله.

جابر رضي الله عنه وایې: مونږ ونې په لختو او ډانګیو وهلې او پاڼې به مو تري را څنډلې بیا به مو هغه په اوبو کې لمدولې او خوړلي به مو، او دبخاري په روایت کې راغلي: مونږ ته دومره سخته لوږه ورسیده چې د ونو پاڼي مو خوړولي. د همدي له امله دی لښکر او ګروپ ته (جیش الخبط) وایې. دپاڼو د څنډلو لښکر.

په دي حدیث کې ډیر ګټې شته ، خو د دي بحث او مقام سره پکې دري فائدي بیانوو:

**اوله فائده:** د جابر رضي الله عنه دا الفاظ **(زَوَّدَنَا بِجِرَابٍ مِنْ تَمْرٍ لَمْ يَجِدْ لَنَا غَيْرَهُ)**،مونږ ته يې يوه بوجې خرما راکړې نور څه نه وو. او **(نَحْمِلُ زَادَنَا عَلَى رِقَابِنَا فَفَنَى زَادُنَا )**،مونږ خپله توښه په شا وړله، او بيا خلاصه شوه.

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم خو ډير رحم، شفقت، خيرخواهې ، خير رسوونکې او دشر دفع کوونکې شخصيت وو، او له بلې خوا د جنګ په ټولو ضرورتونو خبر وو، او دا دري سوه کسيز لښکر يې د صحراء په ګرمي او سختي کې په داسې حالت کې وليږلو چي خپل سامانونه او خوراکې توکې يې په شا کړې وه ، او دومره څه ورسره نه وو چي دوي خپل ټاکلې ځاي او منزل مقصود ته ورسوي، او په دې هم پوه او آګاه وو چي دوي به د داسې دښمن سره جنګيږي چي په هر څه به پوره سمبال وي، او په دې هم نبي عليه السلام خبر وو چي د غزا وخت زيات او لاره کړکيچنه او سخته ده، او يو عسکر او مجاهد ته څومره توښه پکار ده ، او څومره ورته بس ده ، دا خبري يا خو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته معلومې وې، يا نورو د جنګ ماهرانو صحابه وو ته، اويا دجنګ امير ته معلومې وې، او همدا خبره د دې الفاظو څخه جوتيږي چي وايي: مونږ ته لږې خرما راکړې، نور ورسره هيڅ نه وو.

<u>**اوس دلته سوال دادې:**</u> دا کوم حالت چي بيان شو آيا په داسې وخت کې د لښکر ليږل جائز دی ؟ او که نه؟ او که وليږل شي ايا د اسلامي دولت په کړنلاره او سياست کې څه عيب دی او که نه ؟

**جواب کې وايو:** رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل وس او توان برابر ټول کوششونه وکړل چي اسباب لاسته راوړې، او خپل لښکريان هدف ته په وسائلو سمبال وليږي، بيا يې په هغه الله تعالى توکل او بروسه وکړه د چا په لاس کې چي د ځمکو او اسمانونو خزانې دي، او څوک چي په الله تعالى توکل او اعتماد وکړې نو هماغه الله تعالى ورته بس او کافي دی.

نو د کوشش کولو باوجود د اسبابو نشتوالې څه عذر نه دي او نه دښمن سره د مقابلې لپاره مانع (او دنه کولو سبب) دي.رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايې: «لَوْ

تَتَوَكَّلُوْنَ عَلَى اللَّهِ حَقَّ تَوَكُّلِهِ لَرَزَقَكُمْ كَمَا يَرْزُقُ الطَّيْرَ تَغْدُو خِمَاصًا وَتَرُوحُ بِطَانًا».

سنن ابن ماجه باب التوكل واليقين (ج 2/ ص 1394)

**ترجمه : كه تاسې چيرته په الله تعالى باندي ريښتيني تول او اعتماد وکړي، نو داسې رزق به درکړي لکه څنګه رزق چې مرغانو ته ورکوي سهار تشې خيټې ځي ماښام ماړه راځي.**

له حديثونو او رواياتو دا معلوميږي چې نبي عليه السلام د الله تعالى په لار کې د جهاد لپاره ډير حرص او کوشش کولو، او په دښمن به يې حملې کولې او خاصکر د کمزورتيا په حالت کې ډير واقعات ذکر شويدي. او د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا کار د لښکر تباه کول، او ځان هلاکت ته غورځول نه دي او نه چا دا ويلي دي، لکه څرنګه چې نن سبا ځيني خلک په هر هغه علميات او جهادي کړنې چې اسباب يې پوره نه وي اعتراض کوي، او وايي دا خو ځان هلاکت ته غورځول دي.

او درسول الله صلى الله عليه وسلم په دي کار کې يوه ډيره غټه او لوي شان والا رباني( د الله تعالى له خوا) او نبوي فائده او ګټه شته، او په دي اهميت او فائده هغه څوک پوهيږي چې جهاد يې دعبادت په نيت کړي وي، کله چې انسان د اسبابو لټون پريږدي، او يا يې کوتاهي وکړي نو ناکامي او مقصد ته نه رسيدل يې په نصيب کيږي، اوکله چې داسبابو او وسائلو دپيدا کولو لپاره خپل پوره کوشش وکړي، او له دوکې څخه ځان وساتي اوبيا په الله تعالى تَوَکُّل وکړي نو د دنيا او آخرت کاميابي او نيکمرغي يې په نصيب کيږي ، الله تعالى فرمايي: (وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ). سورة المائدة( 23).

**ترجمه : او خاص په الله تعالى تَوکُّل او اعتماد وکړئ، که چيرته تاسې مؤمنان يئ.**

بل ځاي فرمايي: (وَهُزِّي إِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسَاقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا). سورة مريم (25).

ترجمه: او خوزوه د خرما د ونې ډډ چې راتلي شې درته تازه خرما چې خوړل او راختسل یې اسان یې.

که چیرته هغې ویلي چې زه خو کمزوري او مریضه ښځه یم زما د ډډ په خوزولو به څه وشي. نو یقینی ده چې له خُرما وو به محروم شوی وه .

نو همدا حکم دلته هم دي که صحابه وو د یوې خُرما خوړل په دي بهانه پریښي وي چې یوه دانه به څه فائده وکړي؟ نو حتما به مړه شوي او په لاره کې پاتي شوی وو.

مهلب رحمه الله وايي: دغي یوې دانې خُرما د جهاد او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په برکت لوړه ختموله ، او الله تعالی پکې برکت اچولي ووچې لوږه پري راتله او بیا په خُرما ختمیده که چیرته بالکل وربانديي لوړه نه راتلاي نو بیا به د عام عادت څخه وتلي خبره وه، ځکه الله تعالی خو په دی قادر دي چې خوراک ورته پیدا او له تیږو ورته ډوډی جوړه کړي . خو د الله تعالی حکمت د دي تقاضا کوله چي په یوه خُرما کې ورته برکت وکړي.

بل په حدیث کې د دي بیان دي چې صحابه کرام په هر حالت سخته او اسانه کې پوره تابعدار، نیک ګومانه، او د دنیا له خوندونو او مزو بي پروا وو، ځکه خو جهاد ته په داسې حالت کې روان شو چې خپلې توښې او جنګې سامانونه یې په اوږو ایښې وو، او د الله تعالی په دوي دا احسان وو چې الله تعالی ورته ډیر صبر او تکلیفي ژوند سره عادتي کیدل ورنصیب کړي وو، او همدا کارونه د دي سبب شو چې د مصیبتونو او کړاوونو سره یې په سړه سینه مقابله وکړه او پري کامیاب شوه، چې په نتیجه کې یې د دنیا او آخرت ثوابونه وګټل.

او په حدیث کې د صحابه وو د جهاد سره بي کچه مینه او د کافرانو څخه مالونه د دي په خاطر اخستل چې د مسلمانانو په خلاف یې ونه کاروي، اګر که په دي لاره کې دوي سره اسباب کم او ناچیزه وي، او د خطرونو ، ویري او لوږي سره مخ هم شي، او که څوک دا ووايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا معلومات نه وو چې د صحابه وو د لښکر حالت به دومره سختې مرحلې ته رسیږي .

زه وايم : د علماوو تر مينځ د همدي غزا په باره اختلاف دي، ځيني وايي : رسول الله صلى الله عليه وسلم ورسره په خپله وو، او ځيني وايي: هغه ورسره نه وو، خو هغه ليږلي وو، او همدا راجحه او قوي خبره ده، او کوم تکليف چې په دي غزا کې وو، همداسې د ذات الرقاع به غزا کی هم وو، بلکې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته پکې په خپله ډير تکليف رسيدلي دي، ابوموسى رضي الله عنه وايي :

( خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزَاةٍ، وَنَحْنُ سِتَّةُ نَفَرٍ، بَيْنَنَا بَعِيرٌ نَعْتَقِبُهُ فَنَقِبَتْ أَقْدَامُنَا فَنَقِبَتْ قَدَمَايَ، وَسَقَطَتْ أَظْفَارِي، فَكُنَّا نَلُفُّ عَلَى أَرْجُلِنَا الْخِرَقَ، قَالَ: فَسُمِّيَتْ غَزْوَةَ ذَاتِ الرِّقَاعِ مِمَّا كُنَّا نَعْصِبُ عَلَى أَرْجُلِنَا مِنَ الْخِرَقِ). صحيح ابن حبان (111/ 36)

**ترجمه : مونږ په غزا کې د رسول الله صلى الله عليه سره لاړو، او يو اوښ راسره وو چې مونږ شپږ کسان به پري په وار وار سوريدلو، نو زما او دنورو ملګرو پښې سوري او غوڅې شوي، او زما نوکان پريوتل،نو له خپلو پښو څخه مو زړي ټوټې تاوولي،نو دي غزا ته ځکه ذات الرقاع وايي چې مونږ له پښو څخه پټې او ټوټې تاوولي.**

په دي اوله فائده کې يوه ډيره مهمه نقطه داده چې دا تکليفونه، لوږه، تنده، د بدن اندامونه غوڅيدل او ..... دا ټول په دفاعې جهاد کې نه بلکې په طلبې جهاد کې وو، چې دوي دښمن پسې ورغلي وو، نو د دفاعې جهاد چې دخپل دين، حياء، ناموس، او عزت څخه دفاع کوي، او علماء وايي دفاعې جهاد ته شرط نشته، او بې ځايه بهانې او دروغجن دليلونه تا له جهاده معاف کولې ته شې، الله تعالى دي ټول هغه خواته سيده او برابر کړي چې په څه الله تعالى خوښ او راضي وي.

دويمه فائده: د حديث دا تکره **( فأخذ أبوعبيدة بأزواد الجيش، فجمع ذلک كله، فكان مزودي تمر).** ابوعبيده د ټولو لښکريانو څخه د هغوي توښې او مالونه واخيستل او بيا يې ټول لښکر په هغې کې شريک کړو، او حال دا چې د ځينو زيات او

د ځينو کم وو، او د زياتو والا خو پري خپله کذاره کولي شوه، خو هغه هم د نورو په شانته د تکليف سره مخ شو.

ابن بطال د مهلب روايت نقل کوي هغه وايې: امير او مشر دا حق لرى چې خلکو ته د خواخوږي او همدردي امر وکړي او خلک پرى مجبوره کړي، او ټول خلک په پاتو توښو کې سره شريک کړي تر څو د ټولو لوږه کمه او ژوند يې خوندي وساتل شي، او دايي ويلي دي: چې د وخت امام او حاکم دا اختيار لرى چې د خلکو په مينځ کې په خوارکي شيانو کې د همدردي حکم وکړي او عملي کولي يې هم شې، که د پيسو په مقابل کې وي او که بې پيسو وي، دا کار په حضر کې هم کولى شې، نو به سفر او جنګې حالت کې خو يې په طريق اولى کولي شى.

او ابوعبيده رضي الله عنه دا کار له ځانه نه دي کړى بلکې د رسول الله صلى الله عليه  وسلم په نقش قدم روان او عمل يې پرى کړى وو، ام سلمه رضي الله عنها وايې: د صحابه وو خوراکې توکې کم شو، او لوږه پرى راغله، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلل، چې د اوښانو دحلالولو اجازت تري واخلي، نو اجازت يې ورته وکړو.

او په همدي حديث کې راځې: چى رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خلکو ته اواز وکړئ چې هر سړي خپله اضافه توښه او خوراکې شيان راوړئ، ټولو راوړل او په لومڅې يا د څرمنې په فرش يې واچول، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم راپاڅيدو او هغې توښې ته يې د برکت دعاګانې وغوښتلي.

او سويد بن النعمان وايې : زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دخيبر په کال تللى ووم، نو کله چې صهباء نومي ځاي ته چې خيبر ته نږدي دي ورسيدو، دمازيګر لمونځ مو اداء کړو، او بيا يې د خلکو توښې او خوراکې توکې راوغوښتل، نو خلکو يواځې ستوان ( د وړو او غوړيو څخه دشيري په شکل خوراک) راوړل، نو رسول الله صلى الله وسلم امر وکړو چې ديکې ډوډي ماته او وړه کړئ.

په مخکنيو حديثونو کې د نبوي لښکر د اقتصاد د کمزورتيا او د مال دنشتوالي بيان دي، او بله پکې دا خبره ده چې مشر ته پکار دي چې د خلکو زړونه خوشحاله وساتئ اګر که په يوه ښه او خوږه خبره هم وي. تر څو هغوي خپلې شخصې شتمني د ضرورت په مهال کې د خپلو ورونو مخې ته په خوشحالي سره کيږدي. او د مالداره کيدو تر مهال ورسره وعده وکړي، که دا کار يې په خوښه ونه کړو نو مشر يې د ضرورت او سختي په وخت کې په ورکولو مجبورولي شي، لکه څنګه چې د مهلب قول مخکې تير شو.

او د جابر او مخکنيو دوه وو حديثونو کې د امر خبره وشوه د پيسو خبره نه وه، له بلې خوا رسول الله صلى الله عليه وسلم د سفر او حضر دواړو په مهال د دي کار ډيره ستاينه او صفت کړيدی، په بخاری او مسلم کې حديث دي:

«إِنَّ الأَشْعَرِيِّينَ إِذَا أَرْمَلُوا فِي الغَزْوِ، أَوْ قَلَّ طَعَامُ عِيَالِهِمْ بِالْمَدِينَةِ جَمَعُوا مَا كَانَ عِنْدَهُمْ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ، ثُمَّ اقْتَسَمُوهُ بَيْنَهُمْ فِي إِنَاءٍ وَاحِدٍ بِالسَّوِيَّةِ، فَهُمْ مِنِّي وَأَنَا مِنْهُمْ» صحيح البخاري (3/ 138)

**ترجمه : د اشعرينو قوم – ښه خلك دي- كله چې د غزا په مهال د دوي توښه كمه، او خوراكي توكي په خلاصيدو شي، نو ټول په شريكه خپلې توښې په يوه كپړه كې راجمع كړي، او بيا يې په خپلو مينځونو كې د يو لوښي په پيمانه كولو سره تقسيم كړي، نو زه د هغوي او هغوي له ما څخه دي.**

له دي ټولو رواياتو څخه معلوميږي چې غټ مجرم دي هغه څوک چې نفس يې کمزوري او طبيعت يې مردار او خبيث وی، او د الله تعالی مال په داسې حال کې اخلي چې ده سره خپل مال وی، او حال دا چې د ضرورت وخت راغلي وی، او ورونه او د هغوي کورني او خاصکر دبنديانو او شهيدانو کورنې په کړاوونو کې اخته وي، نو دي کس نه خپل مال په غريبانو تقسيم کړو او نه يې ورته نور مال پريښودو چې هغوي ورنه فائده واخلي، بلکې په يوه او بله بهانه يې ورڅخه واخستو.

نو دا تول د ایمان او یقین د کمزورتیا لامل وی، او داسې خلک په دي کړنې سره غواړي چې آینده کې د ده بچې په هغو کړاوونو ونه ربړیږي، په کومو چې د نورو بچې کړیدلي دي، هلاک او تباه دي شې بزدله، سپک او ذلیله نفسونه.

ابن عمر رضي الله عنهما وایې :

(خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى دَخَلَ بَعْضَ حِيطَانِ الْأَنْصَارِ فَجَعَلَ يَلْتَقِطُ مِنَ التَّمْرِ وَيَأْكُلُ فَقَالَ لِي: «يَا ابْنَ عُمَرَ مَا لَكَ لَا تَأْكُلُ؟» قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ لَا أَشْتَهِيهِ. قَالَ: " لَكِنِّي أَشْتَهِيهُ وَهَذِهِ صُبْحُ رَابِعَةٍ لَمْ أَذُقْ طَعَامًا وَلَمْ أَجِدْهُ وَلَوْ شِئْتُ لَدَعَوْتُ رَبِّي فَأَعْطَانِي مِثْلَ مُلْكِ كِسْرَى وَقَيْصَرَ فَكَيْفَ بِكَ يَا ابْنَ عُمَرَ إِذَا بَقِيتَ فِي قَوْمٍ يُخَبِّئُونَ رِزْقَ سَنَتِهِمْ وَبِضَعْفِ الْيَقِينِ). مسند الامام احمد (2/ 259).

**ترجمه : د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره روان وو چې بالآخره د یو انصاري باغ ته د ننه شو، نوهلته نبي علیه السلام له ونې څخه خرما راشلولي او خوړلي، ماته یی وفرمایل: ابن عمره!! ته یې ولې نه خوري؟ ما ورته ورته وویل: زما ورته اشتها نه کیږی ، هغه مبارك راته وفرمایل: زما ورته اشتها کیږي، او دا څلورمه ورځ ده چې هیڅ خوراك مې څکلې هم نه دي، او نه مې په لاس راغلي دي، که زه چیرته وغواړم نو له خپل رب څخه به دعاء وغواړم او په نتیجه کې به د کسری او قیصر په شانته بادشاهې راکړي،ابن عمره !! هغه وخت به دي څه حال وي چې د داسې خلکو وخت ته پاتې شې هغوي د یو کال لپاره خوراکې شیان جمعه کوي او پټوي، او یقین به کمزوري شي.**

دریمه فائده: د غزا فائده لکه څنګه چې د صحابې له دي وینا **( نتلقی عیرا لقریش)** څخه معلومیږي، چې مونږ د قریشو قافله رانیول غوښتل . او عیر : هغې اوښانو ته وایې چې خوراکې او نور شیان وربانديې بار وي، رسول الله صلی الله علیه السلام فرمایي:

" أُوتِيتُ خَمْسًا لَمْ يُعْطَهُنَّ أَحَدٌ قَبْلِي: نُصِرْتُ بِالرُّعْبِ مَسِيرَةِ شَهْرٍ، وَجُعِلَتْ لِي الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا، فَأَيُّمَا رَجُلٌ مِنْ أُمَّتِي أَدْرَكَتْهُ الصَّلَاةُ فَلْيُصَلِّ، وَأُحِلَّتْ لِي الْغَنَائِمُ وَلَمْ تَحِلَّ لِأَحَدٍ كَانَ قَبْلِي" مسند أبوداود الطيالسي ( ج 1/ ج 379).

ترجمه : ماته د الله تعالى له طرفه پنځه انعامات راکړي شويدي چې له ما څخه مخکې هيچاته نه دي ورکړي شوي، د يو مياشت د مزل او مسافې په اندازه د (دښمن) يرولو انعام راکړي شويدي، ( دښمن رانه ويريږي اګر زما او دهغه ترمينځ د يوي مياشتې د پياده سفر لريوالى هم وي)، او دويم : ځمکه راته پاکه او جومات ګرځولي شويدي، زما په هر امتې چې په کوم ځاي د لمانځه وخت راشي نو هملته دي لمونځ وکړي، او دريم : ماته د غنيمتونه استعمالول حلال او روا شويدى، او زما نه مخکې بل چاته حلال نه وو.

سعدي رحمه الله وايي: دا د الله تعالى په وړاندي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د عزت او د هغه د امت د عزت او پوره اخلاص نښه او دليل دى، نو الله تعالى د غنيمت خوړل او استعمال روا کړل سره د دي چې د جهاد په اجر کې يې کوم نقصان او کمې نه راځې.

که څوک د رسول الله صلى الله عليه وسلم د بدر د غزا څخه مخکې غزاګانې او چريکې حملې وګوري، نو دا ورڅخه جوتيږي چې هغه د کافرو د قافلو او مالونو د نيولو په خاطر وو، نو د کافرو مال په غنيمت کې نيول ډير عزتمند او پاکيزه کاربار او ګڼل ده، او الله تعالى دا ځمونږ د پيغمبر او د هغه د کورنۍ د خوراک ذريعه ګرځولي وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

" بُعِثْتُ بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ بِالسَّيْفِ حَتَّى يُعْبَدَ اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَجُعِلَ رِزْقِي تَحْتَ ظِلِّ رُمْحِي، وَجُعِلَ الذِّلَّةُ وَالصَّغَارُ عَلَى مَنْ خَالَفَ أَمْرِي". مسند الامام احمد (9/ 123)

**ترجمه:** زه د قيامت څخه مخکې د توري سره راليږل شوي يم، تر دي چې يواځې د يو الله تعالى عبادت وشي، او شريك ورسره پيدا نه کړي شي ، او زما رزق زما د غشي د سيوري لاندي ګرځل شويدي، او ذلت او سپکاوي د هغه چا په نصيب دي چې زما د امر څخه مخالفت او سرغړونه کوي. دا حديث امام احمد روايت کړي، او امام بخاري پرى هم دليل نيولي دى.

الله تعالى خپل پيغمبر باندي د زكات مال خوړل حرام کړي وو ځکه چې هغه د کمزورو او غريبو خلکو خوراک دي، او د خلکو د مالونو خيري او ګند دي، نو د نبوت مقام د دي غوښتنه او تقاضا کوي چې د پيغمبر او د هغه دکورنى رزق او د خوراک مدرک بايد د کلکي او مضبوطې ارادي ، د تورو او اسلحو د خاوندانو په شانته په پوره عزتمندي او بهادرى سره د غنيمتونو له مال څخه وي.

الله تعالى فرمايي:

(مَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى فَلِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ). سورة الحشر (7)

**ترجمه : هغه مال چې الله تعالى يې خپل پيغمبر ته د کليو او قريو د خلکو څخه د غنيمت په شکل کې ورکوي، نو دا غنيمت : د الله تعالى، دهغه د پيغمبر ،د خپلوانو، يتيمانانو، مسکينانو، او مسافرو حق دي.**

نو رسول الله صلى الله عليه وسلم دهقان (زميندار) ، آهنګر، ترکاڼ (نجار)، نه وو ، بلکې د الله تعالى د لاري يو اتل او بهادر مجاهد وو، په خپله توره له ګټلي مال څخه به يې خوراک کولو، اودابه يې ويل: **(وَجُعِلَ رِزْقِي تَحْتَ ظِلِّ رُمْحِي) .**

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباري کې وايي: په دي حديث کې يو د غشي فضيلت ته اشاره ده، بل دي امت ته د غنيمت رواکيدل ، او دريم دا چې الله تعالى د نبي عليه السلام رزق په غنيمت کې ګرځولي وو، ځکه خو ورته ځينې بهترين کسب وايي.

قرطبي رحمه الله وايې: د رزق د ګټلو شپږ سببونه او لارې دي،او تر ټولو اوچته او بهتره لاره يې زمونږ د پيغمبر کسب او سبب دي د کوم باره کې چې فرمايې: " وَجُعِلَ رِزْقِي تَحْتَ ظِلِّ رُمْحِي، وَجُعِلَ الذِّلَّةُ وَالصَّغَارُ عَلَى مَنْ خَالَفَ أَمْرِي"

نو الله تعالى د خپل نبي رزق په بهترينه طريقه مقرر کړو، او په بهترينه روزي يې ونازولو.

او الله تعالى خپلو مؤمنانو مجاهدينو بنده ګانو ته تشويق او ترغيب ورکړيدي، چې د غنيمت کسب او کار تر ټولو زيات حلال کار دي، فرمايې: (فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلَالًا طَيِّبًا وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ) . سورة الأنفال (69)

**ترجمه : پس وخورئ، پاك،حلال ، مزيدار دهغه مال څخه چې تاسې يې د غنيمت له لارې لاسته راوړي، او له الله تعالى ويريږي، يقينا الله تعالى ډير بخښونکې او رحم والادي.**

بل ځاي فرمايې: (وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا). سورة النساء (94).

**ترجمه : الله تعالى تاسې سره د ډيرو غنيمتونو وعده کړي چې تاسې به يې اخلي.**

بل ځاي فرمايې: (وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ وَأَرْضًا لَمْ تَطَئُوهَا وَكَانَ اللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا). سورة الأحزاب (27).

**ترجمه : الله تعالى تاسې ته د کافرانو ځمکه، کورونه، مالونه او داسې ځمکه په ميراث کې درکړه چې تاسې ديښو لاندې کړې نه وه (ليدلي مو نه وه)، او الله تعالى په هر څه قدرت والادي.**

د همدي له امله به رسول الله صلى الله عليه وسلم د کافرانو قافلي پسې په خپله تللو او مشران صحابه کرام ، (مالدار او غريب) به ورسره وو، او تر ټولو غټ دليل چې د کافرانو مالونه په غنيمت کې اخستل بهترين کار دي، د بدر غازيانو ته لوړه مرتبه ورکول، ګناهونه معاف کول دي، حال دا چې دوى د قريشو قبيلي پسې تللي وو،الله تعالى فرمايې: (وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ). سورة الأنفال (7).

**ترجمه: اوتاسې غواړي او خوښوي چې د تکليف او جنګ نه بغير غنيمت ستاسی شي.**

او رسول الله صلی الله عليه وسلم د ابوسفيان د قافلې باره داسې فرمايي: «إِنَّ لَنَا طَلِبَةً، فَمَنْ كَانَ ظَهْرُهُ حَاضِرًا فَلْيَرْكَبْ مَعَنَا». صحيح مسلم (3/ 1509)

**ترجمه : مونږ ديوي قافلې په لټه کې وځو، که د چا سورلۍ تياره او حاضره وي، نو په سوارلۍ سور او مونږ سره دې رارون شي.**

کعب بن مالک رضي الله عنه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم د بدر نه پاتي صحابه نه ملامتول ځکه چې هغوي د قافلې پسې تللي وو، خو نور قريش د خپلې قافلې د کومک لپاره راووتل او بغير دکومي وعدې، پلان او تياري جنګ کې ښکيل او دښمن سره مخ شو، لکه څنګه چې الله تعالی همداسې بيان فرمايلي دي، او زما دې قسم وي، د رسول الله صلی الله عليه وسلم تر ټولو بهترين او عزتمند کار بار همدا د بدر غزا ده.

نو اوس به هم يو موحد مجاهد دا خبره وکړي چې زه د غنيمت لپاره جنګيدل نه غواړم او حال دا چې د ده پيغمبر او مشرانو صحابه کرامو، دا کار کړيدي، او حتی چې منافقينو هم بې جنګه غنيمتونه خوښول او د هغې لپاره يې ډير حرص کولو ، الله تعالی فرمايي: (سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ إِذَا انطَلَقْتُمْ إِلَى مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ). سورة الفتح (15).

**ترجمه: زر دي چې له جنګه پاتي منافقان به ووايي، چې کله تاسې غنيمتونو پسې ځې، مونږ هم پريږدئ چې تاسې پسې درشو.**

سعدي رحمه الله وايي: کله چې الله تعالی د جنګ څخه د پاتي منافقانو بدي بيان کړه، نو هغوي ته يې يوه نغده دنيوي سزا واوروله چې د غنيمتونو د راټولو په مهال به دغه منافقين تاسې سره د ملګرتوب او تللو غوښتنه کوي، (خو حکم دا دی چې دوي وشړئ او ځان سره يې مه پريږدئ). رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

«تَكَفَّلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ لِمَنْ جَاهَدَ فِي سَبِيلِهِ، لَا يُخْرِجُهُ مِنْ بَيْتِهِ إِلَّا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِهِ، وَتَصْدِيقٌ بِكَلِمَتِهِ بِأَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرْجِعَهُ إِلَى مَسْكَنِهِ مَعَ مَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ» [1].

**ترجمه :څوك چې د الله تعالى په لاره كې داسې مخلص جهاد وكړي چې يواځې جهاد او د الله تعالى د دين تصديق او ربښتينوالى يې مقصد وي،دي كس ته الله تعالى ذمه وارى كوي چې يا به يې جنت ته داخلوى، او يا به يې بيرته هغه كور او جونګړي ته راستنوي له كوم نه چې جهاد ته تللى وو، او كوم اجر او غنيمت چې يې تر لاسه كړو هغه يې اضافي ګټه او فائده شوه.**

د بخاري او مسلم په روايت بل حديث راغلي نبي عليه السلام فرمايې: "الْخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ: الْأَجْرُ وَالْمَغْنَمُ ". سنن ابن ماجه (ج 2/ص 932).

**ترجمه : د اسونو په تنديو كې د قيامت تر ورځې خير بند او تړلي دي، چې هغه اجر او غنيمت دي . نو دلته اجر او مغنم د خير نه بدل دي، او معنا يې داده چې په دنيا كې خير غنيمت دي، او په اخرت كې خير اجر دي.**

---

(1 ) متفق عليه. ابن حجر العسقلاني په فتح الباري كې وايې: كه غنيمت په لاس ور نه شې نو خالص او ډير اجر به وركړي، اويا به غنيمت او اجر دواړه حاصل كړيي، او په حديث كې چي د دويم اجر شويدي نو كيدي شې د دي وجې نه وي شوي چې هغه د اول په نسبت كم دي، او د دي تأويل باعث دا دي چې د حديث ظاهري معنا داسي ده ،چې غنيمت حاصل شي نو بيا اجر نشته ، خو دا مراد نه دي ، مراد دادي چې كه غنيمت وي هم اجر شته ، او كه غنيمت نه وي بيا اجر زيات دي، ځكه چې د قواعدو تقاضا او غوښتنه داده چې د غنيمت سره اجر كم او د غنيمت نه بغير اجر زيات وي، نو حديث نفي د حرمان كي صريح دي، او په نفي د جمع كې صريح نه دي.

نو مجاهده وروره د دي پاک او بهترين کسب لپاره پوره کوشش او چستي او چالاکي وکړه.

خطابي رحمه الله وايي: هغه مال چې د اسونو په ذريعه يعنې په جهاد سره گټل کيږي، د مال د گټلو بهترينه طريقه، او بهترين، پاک او ښه مال دي.

کرماني وايي: د حديث معنا داده چې مجاهد به يا شهيد شي، او يا نه، او دويمه دا چې اجر او غنيمت ورته حتما په لاس ورځي،او د دواړو په يو ځاي هم امکان شته، او ابن عبد البر او قرطبي همدا خبره راجحه او قوي گڼلي ده، چې دلته په حديث کې (أو) د (و) په معنا ده ، نو معنا يې داشوه چې اجر او غنيمت دواړه ورته په لاس ورځي.

او يوه بله مهمه عسکري فائده پکې داده چې جنگي لښکري هغه مهال جنگونه، او مقابلي کولي شي چې په خيټه ماړه وي، نو د مشرکانو په مالونو قبضه کولو، او پري د امداد او راشن د لارو بندولو سره د هغوي قوت کمزوري کيږي، او مرکزونه يې محاصره کيږي، ځکه هيڅ طاقت دانه شي کولې چې خپل امکانيات د هوا (طيارو) له لارو پوره او برابر، سره د دي چې امريکه ډير غټ هوايي طاقت لري، او قسماقسم مترقي طياري لری، خو بيا هم د هغوي (70٪) ضرورتونه له ځمکني لارو څخه تياريږي او پوره کيږي، او الله تعالی مونږ ته امر کړي چې د کافرانو مرکزونه محاصره او په لارو کې ورته کمينونه او مرچې ونيسي، الله تعالى فرمايي: (وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ).

**ترجمه : او دا کافران محاصره او په هر کمين کې ورته کينئ.**

ابن کثير رحمه الله د دي آيت باره کې وايي: د خپل دښمن پسې تللو کې ناراستي مه کوئ، بلکې کوشش وکړئ، او مړه يې کړئ، او هر ځاي کې ورته کمين ونيسئ.

## ای موحدینو مجاهدینو !!

ستاسې لپاره ستاسي نیکه ابوبصیر رضي الله عنه یو ښه رهنما او پیشوا دي، د صلح د قرارداد په وجه هغه رسول الله صلى الله علیه وسلم بیرته مشرکانو ته وسپارلو، خو د هغه نه قوت کمزوري شو او نه يې نااميدى ته ځان وسپارلو. بلکې په دي سوچ شو چې څرنګه ځان له دي فتنې خلاص کړي، او انتظار يې ونه کړو بلکې د لاري اوږدوالي او د کسانو کم والي يې غنیمت وګڼلو او هغه دوه کسان چې په ډیر ناز او نخرو ده پسې راغلي وو هغه يې مړه او دا بیرته خپل خوږ پیغمبر ته راستون شو، نو هغه مبارک ورته وکتل او ويې ویل : (مسعر حرب لوکان معه أحد، أو معه رجال)، ګرموونکې او راپاروونکې د جنګ يې، که چیرته بل څوک یا نورکسان ورسره شی)، نو نبي علیه السلام يې صفت وکړو چې په جنګ کې ډیر تکړه او بهادر يې او د جنګ اهل سړي يې.

خطابي وايې: او د ګلکې ارادي او پاخه عزم مسلمانانو ته چې د دښمن په پنجو کې ګیر وه، دا یوه اشاره وه چې لاړشې او د ابوبصیر سره ملګري شي، نو هغه یواځې ، شړل شوي، بې ملګرو، بې کوره لاړو، خو د همت او مقاومت داسې غرونه ورسره وو چې دولتونه پري جوړیدي شی،او هلته يې د مدینې څخه لرى د بحر په غاړه یوه عسکري مرچله جوړه کړه ، چې په کم وخت يې ملګري زیات شو.

په صحیح روایت کې راغلي : ابوجندل هم له قریشو ځان خلاص کړو او د ابوبصیر سره ملګري شو، او بیا د غه سلسله شروع شوه، چې هر څوک به له قریشو راتلو نو د ابوبصیر خواته به يې ځان رسولو، تر دي چې یوه ډله خلک پوره او برابر شوه، نو بیا به چې کله هم د قریشو قافلې شام ته تللې نو دوي به پري حمله کوله، مالونه به يې تري اخستل او کسان به يې مړه کول، چې بالآخره قریش له دغې ډلې دومره تنګ شو چې رسول الله صلى الله علیه وسلم ته يې جرګه ولیږله چې د الله لحاظ وکړه او مونږ سره د نسب او خپلوئ لحاظ وکړه، دا ملګري دي ځانته

وغواړه او د صلحې هغه شرط چې له مکې راغلي مسلمان به بيرته کافرو (قريشو) ته ستنيږي ختم شو، نو رسول الله صلى الله عليه ابوبصير پسې احوال وليږلو ، او دا ايتونه نازل شو: (وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُمْ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ ............... الْحَمِيَّةَ حَمِيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ) . سورة الفتح (18).

**ترجمه: الله تعالى هغه ذات دي چې دمکې په مينځ کې يې د کافرو لاسونه له تاسي اوستاسى لاسونه له کافروڅخه منعه او بند کړه، وروسته له دي چې الله تعالى پرى کاميابه او برلاسې کړئ.**

وګوره او سوچ وکړه !! څنګه د غې همتناکې او بهادري ډلې د قريشو زور مات، او دهغه شرط د ختمولو لپاره واسطې او وسيلي ليږي کوم چې مسلمانانو ته ذلت او کمزورتيا او کافرانو ته ډيره غټه کارنامه ښکاريده، او همدا خبره هم عاقل ته بسنه (کفايت) کوي چې دمسلمان لپاره خوشحالوونکي او د کافر لپاره ژړوونکې خاتمه او انجام د بحر د غاړي د زمري او اتل په لاسو پوره شوه.

حافظ ابن حجر په فتح الباري کې وايې: دقريشو د جرګې او سپارښتنې او رحم غوښتنې نه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم ابوبصير ته خط وليږلو ، کله چې ابوبصير ته خط ورسيدو ،نو د اجل جام يې په داسې حال کې نوش کړو چې د خپل خوږ نبي صلى الله عليه وسلم خط يې په لاس کي وو او روح يې خپل رب ته وسپارلو، او بيا او ابوجندل په هماغه ځاي کې ښخ او دفن کړو.

يو بله مهمه او اړينه فائده خاصکر ځمونږ لپاره چې مونږ د اسلامي دولت د جوړيدو په اولنيو مرحلو کې شتون لري، هغه دا چې د لښکرو د اکمال او وسائلو د برابرولو يواځينې مالي مدرک د غنيمتونومالونه دي، دتاريخ په اوږدو کې چې هر اسلامي دولت جوړ شوي نو د خزانو اکثره عائد او ګټه يې د غنيمت له لاري وه.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله وایې: حکومتي مالونه چې اصل او بیان یې په قرآن او حدیث کې راغلي دري قسمه دي: غنیمت ، زکات، او فئ ( د دښمن هغه مال چې بغیر د جنګه لاسته راشي)

## اي د الله تعالی دوسته !!

اجر او ثواب له الله تعالی څخه غواړه، او هر وخت په ذهن کي دا خبره کلکه او مضبوطه ساته چې د کافر او مرتد نه غنیمت نیسم، چې دبندیانو او شهیدانو د کورنیو لپاره توښه، او د بل مجاهد لپاره ګټه او توښه شې، سلاح ورباندي اخلم چې د الله تعالی په لار کې پرې جهاد وکړم، او خیال کوه چې ستا جهاد دي یواځې د غنیمت لپاره نه شې ، اخلاص ډیر ضروري دی.

# دریم باب

## دنبوي دولت کړاوونه او تکلیفونه اوس په نوي اسلامي دولت کې بیا راتازه شوې او شتون لري

### په نبوي دولت کې ځینې تکلیفي سحنې او وختونه:

ځینې هغه سخت وختونه چې د نبوي دولت شتون او برقرار پاتې کیدو ته ګواښ وو:

په نبوي دولت کې د داسې سختو امتحانونه ورځې او مرحلې راغلي چې سختې پکې آخري اوج ته رسیدلي وه، او بد اثر یې هم ډیر زیات وو، د هغې له جملې څخه یوه د أُحُد د غزا ناوړه پیښه وه.

امام طبري او نور وایې: رسول الله صلی الله علیه وسلم د زر کسه صحابه وو په ملتیا أُحُد ته روان شو، کله چې دمدینې منوري او أُحُد ترمینځ د شوط نومې ځای ته ورسیدو، نو عبدالله بن أبي بن سلول دریمه حصه لښکر بیرته راستون کړو، او ویل یې: پیغمبر د خلکو خبره ومنله او ځما یې ونه منله، او زه نه پوهیږم چې دلته مونږ ولې خپل ځانونه وژنو، نو له ځان سره یې منافقین او خپل هغه خپلوان چې ایمان یې په شک بنا وو راستانه کړه، د بني سلمه د قبیلې عبدالله بن عمرو بن حرام وریسې ورغې او خلکو ته یې وویل: ای زما قومه! د الله لحاظ وکړئ، د دښمن د راتلو په مهال خپل پیغمبر او خپل قوم مه پریږدئ او مه یې ناکاموئ. هغوي ورته وویل: که مونږ خبر وي چې تاسې جنګ کوي بیا خو مونږ اسلام نه راوړو، او مونږ خو د اول نه دجنګ قائل او طرفدار نه وو، کله چې هغوي نافرمانې وکړه او خبره یې ونه منله نو عبد الله بن عمرو وویل: ای د الله تعالی د ښمنانانو ! الله مو هلاک او برباد کړه ، الله تعالی به مسلمانان ستاسې نه بی پروا کړي، او

تاسی ته به يې هيڅ ضرورت پاتي نه شی، او بيرته نبي عليه السلام ته راستون شو. بيا په دي مهال د سورت آل عمران (167) ايت نازل شو.

**په دي حادثه او پيښه کې مهمې نقطې دي:**

**اوله نقطه:** دا لوی ناورين،سخت عسکري کړاو او خطرناک مشکل دي، چې د لښکر دريمه حصه بيرته مدينې ته ستانه شول، چې په نتيجه کې يې ډيره ګډوډي او بي نظمې د جنګ په پلان کې راغله، او له بلې خوا د جنګياليو شمير کم او جنګې وسائل ورسره د نشت برابر ته ورسيده، او بده پکې دا وه چې دا کار د شوط نومې ځاي کې وشو چې هغه د جنګ ميدان سره نژدې او دواړو ډلو (کافرانو او مسلمانانو) ټول حالات وليدل، او له دي هم ډيره خطرناکه داوه چې د صحابه کرامو ذهن ته يو سوال راغي چې زمونږ په مينځ او صفونو کې دريمه برخه کسان مسلمانان نه بلکې منافقان وو،ظاهر کې يې د محبت، ملګرتيا او کومک چغې وهلي، او په باطن کې يې کرکه، نفرت، دښمنې او د جنګ ارادي پټې ساتلي او نغښتې وي، الله تعالی فرمايې:

( وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَاتَّبَعْنَاكُمْ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِمْ مَا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ).سورة آل عمران (67).

**ترجمه : او پوه دي شې منافقان چې دوي ته ويل شوي وه چې راشئ د الله تعالی په لاره کې جنګ وکړي، هغوي وويل که مونږ خبر وي چې جنګ شته نو درسره به لاړو( خو حقيقی جنګ نشته او نه جنګ ته ضرورت شته)، دوي په دغه ورځ کفر ته له اسلام څخه ډير نژدي دي، په خولو هغه څه وايې چې په زړه کې يې نشته، او الله تعالی په هغه څه چې دوي پټوي ډير ښه خبردار دي.**

بل ځاي فرمايي: (فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللَّهُ أَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوا). سورة النساء (88).

**ترجمه: پس ولې شوي تاسې د منافقانو په باره کې دوه ډلې، الله دوي د خپلو کړو عملونو په وجه رانسکور کړيدي.**

د دي آيت سبب نزول لکه څنګه چې بخاري او مسلم ذکر کړيدي،زيد بن ثابت رضي الله عنه وايي: کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم أُحُد ته لاړو، په تللو خلکو کې ځينې (300 منافقان) راستانه شوه، نو صحابه کرام دوه ډلې شو ، ځينو ويلې دي منافقانو سره جنګ کوو، ځينو ويلې نه يې کوو.نو دا آيت (فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللَّهُ أَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوا) نازل شو.

امام طبري رحمه الله دي آيت باره کې وايي: ای مؤمنانو! څه شان دي ستاسې چې د منافقانو باره کې دوه مختلفې ډلې شوي،الله تعالی دوي د خپلو عملونو په وجه رانسکور کړيدي، يعنې الله بيرته د شرک احکام پرې جاري کړيدي چې وينې مباحې (وژل يې روا) او بچې يې وينځې او غلامان شې. [1]

ابن القيم رحمه الله په زاد المعاد کې وايي: زهري، عاصم بن عمرو، محمد بن يحيی بن حبان ،او نور علماء وايي: د أُحُد ورځ يو امتحاني او چاڼوونکې ورځ وه، الله تعالی پکې د مسلمانانو امتحان واخستو او هغه منافقان چې په ژبه يې د ايمان دعوي کولې او زړه کې کفر پوخ کړي وو راښکاره اوجدا کړه.

---

(1 ) دلته د اسلامي امت اوسني حالت ته اشاره کول مناسبه ده ،ځکه ډير داسې خلک پيدا شوي چې اوږدې او غټې غټې خبرې کوي، او د جهالت په پوړي ( زينه) ختل غواړي، او داعتدال او مينه روی خبرې کوي، او په حقيقت کې دا يو سپکه او ذليله ناکامې ده، دوي خلکو ته د جهاد تصور داسې ورکوي چې جهاد کافر سره پکار دي، او د غرب کافران ده ته مسالمين ( دصلحې په حالت کې) ښکاري، او دمجاهدينو کار ته ظلم او تجاوز وايي، او دوي چې زمونږ په خاوره او حياء تعرض کړي ، او دلته يې د ابن سلول ځامن پيداکړي چې ځان تش په خوله اسلام ته منسوبوي، دوي سره جنګ ورته جهاد نه بلکې ظلم ښکاري.

او حقيقي مجاهدين هيڅکله شاته پاتې، ناکام، بزدله، منافق، دنيا پرسته، او .... ته نه ګوري که شمار يې ډير زيات هم وي، خو په دې شرط چې دا مجاهد د الله تعالی سره خپل نيت خالص سوچه کړي،او په خپل رب توکل او اعتماد وکړي، او د کاميابۍ د اسبابو د لاسته راوړني لپاره خپل ټول کوششونه پکار واچوي.

**دوهمه نقطه :** د رسول الله صلی الله عليه وسلم په عزتمندو، نيکخويه،او لوی همت والا صحابه وو باندې د داسې حادثې اثر چې په ناڅاپي توګه يې ښکرونه اسلامي لښکر ته اړم او د مسلمانانو صف يې نيمګړي او درز يې پکې واچوو، او بله داچې په دې کسانو کې د دوی ورونو،تره ځامنو، تربورانو، او خپلوان شتون درلودلو .خو د الله شکر او احسان ووچې څه حقيقي او ښکاره ناوړه اغيزه يې ونه کړه،يواځې دوه ډلو چې يوه د اوس بنو حارثه او بله د خزرج بنو سلمه وه چې د ستنيدو اراده يې کړې وه ، چې دهغوی باره کې الله تعالی مونږ ته داسې خبر راکوي:

(إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ) . سورة آل عمران (122)

**ترجمه: ياد کړه هغه وخت چې ستاسو له ملګروڅخه دوه ډولو د ناکاميدو (راستنيدو) اراده وکړه، او الله يې دوست او مددګار شو، نو په الله تعالی دې مؤمنان توکل او اعتماد وکړي.**

امام طبري رحمه الله وايې:عبد الله بن أبي بن سلول چې کله راستون شو، نو دې ډلو د راستنيدو قصد وکړو، خو الله تعالی يې ساتنه وکړه، جابر بن عبد الله وايې: او زه په دې خوښ او خوشحاله شوم چې نازل شو ځکه چې (وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا). سره د دوی د صفايي او براءت اعلان وشو.

د دې سخت لړزوونکي، زړه بوګنوونکي او ستونزمن حالت بدې پايلې او ناوړې اغيزې په نبوي لښکر باندې نه وي، بلکې په هغې سخت وخت کې بيخې د دې خبرو بحث او څيړنې ته يې هيڅ توجه ونه کړه او نه د دې کار د راټلونکې او حاضر وخت

په سوچ کې شوه، بلکې سمدستې په خپلو صفونو کې ځای په ځای شوو، او د جنګ لپاره یې امادګې او تیاري ونیولو، همتونه او ایماني جذبې یې راوپارولې او خپل مولا او کومک کوونکې ذات ته لاس په دعا شول، او د خپل رب او پیغمبر د حکم د تطبیق او عملي کولو په هڅه کې شول، او دا خو لا څه کوې چې د منافقانو د ستنیدو څخه وروسته د صحابه کرامو همت او حوصلې لا پیاوړې او زیاتې شوې.

د جنګ قوماندان ( نبي علیه السلام) وغوښتل چې د خپلو صحابه وو جذبات او حماسې وازمویې، نو اواز یې وکړو: (من یأخذ هذا السیف بحقه). دا توره څوک اخلې چې حق یې اداء او پوره کړې، نو ډیر کسان یې د اخستو لپاره راپاڅیدل،او ابودجانه توره واخسته او د صفونو مخې ته په فخر روان شو، نو رسول الله صلی الله علیه ورته وفرمایل : (إنها مشیة یبغضها الله إلا في هذا الموضع)، د غه د فخر تګ او مزل د الله تعالی بدې او ناخوښه شې خو په دې ځای کې ورته خوښ دې.

ابن اسحاق وایې: بیا الله تعالی مسلمانانو ته خپل نصرت او کامیابې راولیږله او خپله وعده یې ورسره پوره او رښتیا کړه، نو په تورو یې کافران جارو کړه او د جنګ له میدانه یې خړ سترګې او شرمنده وشړل او کفري لښکر د ناکامی جام نوش کړو.

قسم په الله تعالی چې د صادقه او رښتینو موحدینو همت او بهادرې سره د ملګرو کموالی اد د دوښمن ډیروالې هیڅ تاوان نه لرې، اګر که دوښمن ډیر شان شوکت والا، او ته ډیر کمزورې هم یې، خو چې مقصد د الله تعالی اود هغه د پیغمبر تابعدارې وې، نو بیا د یو دوکه باز مشر، ملک، جادوګر، کوډګر چې د تقوی او دینداري دعوې کوې، مرتد کیدل هیڅ اثر او اغیز نه لرې، چې مثال او نمونه یې د أوس د قبیلې ابوعامر الفاسق وو، چې نن سبا د صحواتو( چریکې تنظیمونو) شیخان او مشران ورسره یو شانته حیثیت لرې، په دې هکله ابن کثیر رحمه الله

وایې: ابوعامر به قریشو سره  وعدي کولې که چیري د خپل قوم دوه کسانو سره هم مخ شې نو خپله بهادري به وښایې، نو کله چې جنګ شروع او دواړه ډلې سره مخامخ شوي، اول کس د حبشیانو څخه ابوعامر او د مکې عدان وو، نو اواز یې وکړو یا د اوس قبیلې زه ابوعامر یم، هغوي ورته وویل: ای فاسقه! تا جاسوس خو دي الله واخلئ، او ده ته به خلکو د جاهلیت په وخت کې راهب ویلې.

نو اولنې کس چې د ده (أبوعامر) مرګ پسې ډیر په چستې او بهادري راغي هغه یې خپل ځوي حنظله وو چې ملائکو ورته غسل ورکړي وو، د واده د شپې بستر او ناوي یې په دي اراده پریښوده چې د خپل پلار ژبه پري او څټ یې مات کړي، هماغه وو چې حنظله د شهادت لوړ مقام وګټلو، نو آیا د وطن پرستې، او د وینې د ساتنې دلیلونه او پوچې وعدې د دي دلیل په مقابل کې څه حیثیت لري؟؟

ای د اسلامې دولت شاه زلمیانو او زمریانو!! پام کوئ چې د منافقینو، بزدلو، او ناکامو خلکو په مرتد کیدو مو حوصله کمزوري نه کړئ، او یقین ساتئ چې الله تعالی ستاسې کومک کوونکې دي، او له الله تعالی څخه د ثابت قدمې دعاګانې وغواړي، یا الله زمونږ قدمونه مضبوط، صبر مو نصیب ، او په کافرو مو کامیاب او بریالې کړه.

**دریمه فائده :** د أُحُد په ورځ د لښکر د تعداد اوشمیر په هکله امام طبري وایې : رسول الله صلی الله علیه وسلم أُحُد ته د زرو (1000) کسانو په ملتیا روان شو، او دا هغه شمیره ده چې دسیرت او تاریخ لیکوالان پری متفق دي، او اختلاف په دي کې دي چې د ځینو کسانو د ستنیدو وروسته څو کسان پاتي شوه، چې دهغې باره کې د زیاترو رایه داده چې پاتې اووه سوه (700) کسان وو، او همدا صحیح او راجحه خبره ده او دلیلونه پري شته.

او د أُحُد په ورځ جنګ عام وو هیڅوک تري نه وو پاتي شوي، مګر معذور ( ګوډ، ړوند او .....) تري پاتي اوهغوي هم د ګوتو په شمار یو څو کسان وو، شیخ الاسلام

ابن تیمیه رحمه الله  د دفاعي جنګ باره کې وايي: دا ( دأُحُد) او د دي په څیر نور دفاعي جنګونه دی نه طلبي چې ته دښمن پسې ورځي، نو له دي څخه وروسته کیدل او پاتي کیدل په هیڅ صورت کې جواز نه لري، او د أُحُد غزا د همدي (دفاعي جنګ) له جملې څخه وه.

څکه چې دښمن په دی اراده راغلي وو چې اسلام او مسلمانان په خپل کور کې ذلیله او له بیخه یې وباسي او جرړي یې ختمې او خنثا کړي، او رسول الله صلی الله علیه وسلم خلکو ته د وتلو حکم وکړو، ابن القیم رحمه الله وايي: کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جمعې لمونځ اداء کړو نو خلکو ته یې وعظ اونصیحت وکړو، او په جهاد کې د کوشش کولو اوځان ورته د تیارساتلو باره کې یې امر وکړو، نو دمدینې ټول خلک ځوانان او بوډاګان جهاد ته روان شول، او هر چا چې د جنګ کولو توان لرلو او یاپې عمر پنځلس کلو ته رسیدلي وو  هغه ته یې د تلو اجازت وکړو، او ځینې کسان او څه بوډاګان یې بیرته راستانه او په جنګ کې له برخې اخستلو څخه منعه کړه.

خیثمه د سعد پلار راغي او نبي علیه السلام ته یې وویلې: زما عمر زیات او هډوکې کمزوري اونازک شویدي، او د خپل رب ملاقات ته مې شوق شویدي، نو ماته دعاء وکړه چې الله تعالی راته شهادت نصیب کړي، او د سعد- خپل ځوي- سره په جنت کې ملګري شم، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته دعاء وکړه او په أُحُد کې شهید شو.

خلاصه د خبري دا شوه چې د أُحُد په ورځ د نبوي دولت د ټول لښکر تعداد اوه سوه کسان وو سره د دي چې دري کاله مخکې نبوي دولت جوړ او اعلان شوي دي، د دي خبر تایید د بخاري او مسلم روایت کوي، حذیفه رضي الله عنه وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (اکتبوا لي من تلفظ بالاسلام من الناس) او د مسلم په روایت کې راځي (احصوا لي کم یلفظ بالاسلام) . ماته دټولو

هغو کسانو نومونه ولیکئ چې د اسلام کلمه یې ویلی ده ، نومونږ ورته یو نیم زر (1500) کسان ولیکل، او بل روایت کې : پنځه سوه راځې، او حافظ ابن حجر په فتح الباري کې وایې چې د حدیث د صحت دارمدار اوتعلق د اعمش پوري تړاو لري، او ملګرو یې د تعداد باره کې ورسره اختلاف کړیدي.

د دي اختلاف او په مینځ کې یې د جمعی لپاره علماوو داسې تفسیر او توجیه کړیده، ځینو ویلي دي: ډیر عدد د ټولو مسلمانانو – نارینه وو ،زنانه وو او ماشومانو- شمیري ته اشاره ده او له کم عدد څخه یواځې د جنګ اهل او جوګه خلک مراد دي.

او ځینې علماء په دي نظر دي چې له کم عدد څخه مراد یواځې دمدینې جنګیالیان دی، او له ډیر عدد څخه د مدینې او شاوخوا ټول جنګیالیان مراد دی.

د دي په خاطر چې مونږ ته د أُحُد د جنګیالیانو صحیح او دقیق شمار په لاس راشې، نو له دي مخکې دا اړینه ده چې د دغې سرشمیرنې وخت معلوم او په نښه کړي شي،ابن حجر په فتح الباري کې وایې : دا د أحد په غزا کې شوي وه، او کیدي شې چې مقصد یي د منافقانو څخه د ځان ساتنه وه، چې دغه احتمال أُحُد ته د تلو په مهال ډیر ځلانده ښکاري.او په شرح ابن التین کې راغلي چې دغه سر شمیرنه د خندق دکنلو په مهال شوي وه، او امام داودي وایې: دا په حدیبیه کې شوي وه، او د ابن حجر د خبري څخه داسې معلومیږي چې له أُحُد څخه وروسته شوي وه، او دا ماته هم راجحه او قوي خبره ښکاري.

نو معلومه شوه چې نبوي دولت ته د دي دري سوه کسانو په ستنیدو ډیر زور ورسیدو، او له دي غټ خطر داچې د مسلمانانو په صفونو کې د دښمن دشتون یره هم پیدا شوه، نو داسې ښکارې چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سرشمیرني څخه مقصد همدا ووچې د سوچه مسلمانانو تعداد معلوم او منافقین تري لیري کړي، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هر وخت د دښمن سره د

جنګ په حالت کې قرار درلودلو، او د دې خبر تایید د مسلم، أحمد، ترمذي، ابن ماجه روایت کوي چې شمار شوي کسان د شېږو او اووه سوو په مینځ کې وو، او همدغه تعداد د أحد په غزا کې هم وو، او بله داچې د دې حدیث راوي هم حذیفه دي چې هغه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم د منافقانو باره کې پوره معلومات ورکړي وو. والله أعلم.

نو اوس یو مهمه پوښتنه چې د هغې لپاره رانه خبره دومره اوږده شوه هغه داده چې آیا د اسلامي دولت د جوړیدو او قائمیدو لپاره دا تر ټولو کم تعداد دي؟ او د قبضې کولو او وطنونو نیولو او تر خپلې ولقې راوستلو اندازه څومره ده؟ او آیا دغه اندازه نسبي ده که نه هر وخت او هر ځاي همدومره پکار ده ؟ نو د اسلامي لښکر د کامیابي او دځمکو د لاسته راوړنو د پیژندلو لپاره د أُحُد نه وروسته په حالاتو باندي یوه رڼا اچول ضروري دي.

اوه سوه جنګلیالي مسلمانان په زخمونو کې ډوب او په خپلو وینو کې لت پت او په ډیر سخت خفګاني حالت کې راګیر شوه، لکه څرنګه چې الله تعالی دا حالت داسې ستايي: ( فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ)، د یو غم دپاسه په بل غم واوریدي، او د دې مقابل کې دري سوه منافقین په داسې حال کې ستانه شوه،چې پوره جنګي وسائل ورسره وو، په ظاهر کې د اسلامي ټولنې برخه او حصه وه، او د مسلمانانو په ټولو رازونو خبر وو، او له بلې خوا د یهودو اداري کارونه ښه منظم او عسکري اړخ پوره پیاوړي او د تیارسي په حالت کې وو، او د مسلمانانو سره یې ډیري معاهدي امضاء کړي وي، چې هر وخت به د هغې دماتولو په تکل کې وو، او د مناسب فرصت انتظار به یې کولو، چې د منافقینو ستنیدل هغوي ته یو زرین موقع او فرصت وو، او د دې سره سره یو بل دښمن هم وو چې دهغوي خطر کم وو، او دوي د مدینې منوري هغه کسان وو چې لا تراوسه یې د اسلام منلو ته لبیک نه وو ویلي، او دوي هم ډیر کسان وو ځکه که مونږ په فتح مکه کې د مسلمانانو شمیر ته

وګورو نو ډېر زيات وو، او د همدې مدينې خلک وو، نو معنی دا شوه چې دغه کسان د أُحُد په مهال لا مسلمانان شوي نه وو،او په دوي کې د عربانو غټ غټ ملکان او مشران شامل وو.

په صحيح بخاري کې د براء رضي الله عنه روايت دي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته د أُحُد په ورځ يو کس راغي چې زغره داري جامې او خول (اوسپنيزه خولۍ) په سر وه، او ويې ويل: يا رسول الله جنګ شروع کړم که اسلام راوړم؟ نبي عليه السلام ورته وفرمايل: (أَسْلِمْ ثُمَّ قَاتِلْ). اول اسلام راوړه بيا جنګ شروع کړه، نو هغه اسلام راوړو، بيا يې تر هغې جنګ وکړو چې بالآخره شهيد شو، نو نبي عليه السلام وويل: (عَمِلَ قَلِيْلاً وَ أُجِرَ كَثِيْراً) . لږ عمل يې وکړو او ډېر اجر ورته حاصل شو.

په ځمکه د نبوي لښکر قبضه او لاسته راوړنه د مسلمانانو د صفا عقيدي،اتفاق او يو موټي کيدو، اود صف ديوالي په وجه کلک او مضبوط شتون درلودلو، خو يو څه اسباب داسې ووچې د غه مزه يې يو څه بې مزې کړي وه، يو د دري مخالفو ډلو شتون، - دا د مدينې شاوخوا علاقو ته په کتلو سره- خو که مونږ دغې قوت ته د لري خلکو د خطر اندازه او کمين ته زير شو او غور پکې وکړو ، نو هغه ډير زيات وو،ځکه له يوې خوا قريش او له بلې خوا نور عربان وو، او د روم او فارس دښمني خو لاپريده ، نو په دي لحاظ خبره ډيره خطرناکه او دتشويش وړ ښکاري.

نو آيا  نبوي دولت د أُحُد له واقعې څخه ورسته پاتي شو او که دړې وړې شو؟ ځکه چې نن سبا ځينې پوچ دماغه خلک د سرشميرنې، جنګي وسائلو، په وطنونو او هيوادونه باندي قبضه، او.... ديته ګوري.

راځئ چې اوس يوه بله غميزه وګورو چې د دي ګواښ نبوي دولت ته له مخکنيو کړاوونو څخه ډير زيات وو، او هغه دخندق د غزا غميزه وه چې د کافرو ډلې او حزبونه پکې د اسلام خلاف راټول شوي وه، الله تعالی فرمايي:(إِذْ جَاءُوكُمْ مِنْ

فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا. هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا). سورة الأحزاب (10)

**ترجمه: یاد کړه هغه وخت چې دوي تاسې ته راغله د بري او ښکته اړخه، او کله چې سترګې( له ډیره هیبته) کږي، او زړونه مري ته راورسیده، او ګومانونه مو کول په الله تعالی ډیر ګومانونه، نو په دغه وخت کې په مسلمانانو امتحان راغلو، او په ډیرو سختو خوزیدلو او تکلیفولو سره تکلیف شوه.**

**د خندق د غزا نقشه:** د خندق د غزا نقشه په لاندي ډول وه:

رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو د دښمن دمنعه کولو په خاطر (لوي لختي) کنلو، او دا کار دسلمان فارسي په مشوره شوي وو، او هغه ورته ویل: مونږ به چې کله د فارس په ځمکه کې محاصره شو نو د ځان نه په شاوخواته خندق وکنستو، او بیا مسلمانان چې شمیر یې زرو[1] تنو ته رسیدلو د دي خندق شاته په سنګرکي ځاي په ځاي شوه،

ابن تیمیه رحمه الله وایي: د بدر په غزا کې مسلمانان دري سوه او دیارلس(313) کسان وو، او د أُحُد په غزا کې اوه سوه (700) کسان وو، او د خندق په غزا کې له زرو څخه زیات او یا ورته نژدي وو، چې د دوي په مقابل کې لس زره (10000) کسانو دعربو له مشرکانو څخه دا کلک عزم او هوډ کړي وو چې مدینې منوري ته به ننوځي او ټول مسلمانان به وژني، او په همدي سخت وخت کې بل دښمن پیدا

---

(1 ) همدا تعداد راجح دي – ان شاء الله – اګر که ځینو د سیرت علماوو یکې اختلاف کړیدی، خو په دي باندي ډیر دلیلونه شته، چې اوس یې دا د بیان مقام نه دي.

او نبوي دولت ته ګواښ او مشکل شو او هغه د بني قريظه ديهودو له خوا د تړون ماتول او د جنګې ډلو سره د ملګرتيا اعلان وو.

حاکم او بيهقي له حذيفه رضي الله عنه څخه روايت کوي وايي:مونږ د احزاب په ورځ صفونه صفونه ناست وو، او ابوسفيان او ورسره ملګري ډلې د بره اړخه، او دبني قريظه يهودو له ښکته اړخه کمين نيولي وو، او مونږ په خپلو بچو يريدلو.

سعدي رحمه الله وايي: مدينه منوره يې محاصره کړه، او خبره ډيره سخته شوه، او زړونه مري ته راورسيدل، تردي چې زياتره خلکو ته ډير نااشنا ګومانونه پيدا شوه، ځکه چې ډيري سختياني راغلي او دښمن په ډيرو مضبوطو وسائلو سمبال وو.

مسلمانانو ته ډيره زياته ويره (ډار) او لوږه ورسيدله، آن تردي چې يوه ورځ رسول الله صلى الله عليه وسلم خلکو ته اواز وکړو: (مَنْ رَجُلٌ يَقُومُ فَيَنْظُرَ لَنَا مَا فَعَلَ الْقَوْمُ يَشْرُطُ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ يَرْجِعُ أَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ) .

**ترجمه: داسې څوك شته چې لاړشي او وګوري چې دي خلکو ( کافرانو څه وکړه،او څه کوي. نو هيڅوك، وراوچت نه شو.**

بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپې لمونځ وکړو، بيا يې دغه مخکني اواز وکړو، او ورسره يې دا الفاظ زياد کړه (أَسْأَلُ اللهَ أَنْ يَكُونَ رَفِيقِي فِي الْجَنَّةِ)، له الله تعالى سوال کووم چې زما سره په جنت کې ملګري شي، بيا هم د ډيري سختي ويري، لوږي او يخنې څوک تيار نه شو، نو کله چې هيڅوک تيار نه شو، حذيفه وايي: ماته نبي عليه السلام اواز وکړو، نو بيا خو زما هيڅ خلاصي نه وو او نه مې انکارکولي شو، نو ورغلم...

کله چې خبره ښه سخته شوه،او رسول الله صلى الله عليه وسلم سره دماشومانو او ښځو په باره کې د بنې قريظه د يهودو څخه يره پيدا شوه، ځکه چې هيڅ عسکري سنګر شتون نه درلودو او هسې نه چېرته د هغوي مردار لاسونه

مسلمانانو ته راوږده نه شئ، ځکه چې د هغوي د منع کولو او له مدينې څخه د دفاع لپاره څه بندوبست او انتظام نه وو.

له دې ناورين څخه د وتلو په منظور رسول الله صلی الله وغوښتل چې د کافرو ډلې تس نس او جدا کړي، نو د غطفان قبيلې ته يې د يو استازي د ليږلو اراده وکړه او ورڅخه يې وغوښتل چې بېرته ستانه شي، جنګ پرېږدئ، مونږ به تاسې ته د مدينې منورې د ميوو دريمه برخه درکړو، په دې مسئله خبرې اترې روانې وې،او کله چې د اوس او خزرج د قبيلو مشرانو ( سعد بن معاذ او سعد بن عباده) سره مشوره وشوه نو هغوي وويل: قسم په الله ميوې نه بلکې توره ورته ورکوو يعنې جنګ ورسره کوو، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وويل: ما فکرو وکړو چې ټول عربان ستاسې خلاف راپاڅيدلي او له يوې ليندې دربانديي غشې راولي، نو ما ځکه د دې کار اراده وکړه.

همداسې کړاوي ژوند روان وو چې بالآخره الله تعالی کاميابي او نصرت راوليږلو، الله تعالی فرمايي: (يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَمْ تَرَوْهَا وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا). سورة الأحزاب (9)

**ترجمه: ای مؤمنانو !! ياد کړئ د الله تعالی نعمتونه په تاسې باندې، کله چې تاسې پسې لښکرې راغلې، نو مونږ پرې بادونه (هواګانې) او داسې لښکرې راوليږلې چې تاسې ته نه ښکاريدې ، او الله تعالی ستاسې دعملونو ليدونکې ده.**

او دا نصرت د ريښتينې ايمان، ښه امتحان ورکوونې،ښائسته صبر، او په الله تعالی د پوره توکل په مقابل کې حاصل شو، الله تعالی فرمايي: (وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا) . سورة الأحزاب (22).

**ترجمه : کله چې مؤمنانو د کافرو ډلې ولیدلې، نو ویې ویل: دا هغه څه دي چې مونږ سره یې الله تعالی او دهغه رسول وعده کړې، او الله تعالی او رسول یې خپله وعده رښتیا کړه،او په دې سره د هغوي نور هم ایمان او الله ته تسلیمیدل زیات شو.**

او په دې هم پوهیدل پکار دي چې دې جنګ ته مسلمانان یا خو اقتصادي تیار نه وو، او که تیار وو نه وسائل ورسره نه وو، ځکه چې دخندق د کنیستلو په وخت نور وسائل خو لا څه چې د خوراک لپاره هم ورسره څه نه وو، سره د دې چې دوي زمیندار او د کروندې والا خلک وو، خو د جهادي سرګرمیانو په وجه یې ځمکې شاړې پاتې شوې وې.

د دې ایت د سبب النزول په باره کې راځي: (وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ). سورة البقرة (195)

**ترجمه:او تاسې ځانونه په خپل لاس د هلاکت ځای ته مه غورځوئ، او نیکې کوئ یقینا الله تعالی نیکې کوونکې خوښوي.**

ابو أيوب الأنصاري رضي الله عنه وایې: اې خلکو! تاسې خو د دې ایت معنی او تأویل د خپل سوچ او ظاهري مقصد په بنیاد کوئ، حال داچې دا ځمونږ – انصارو- باره کې نازل شویدې، کله چې الله تعالی اسلام قوي او مسلمانان زیات کړه، نو مونږ خپلو کې یوبل ته له نبي علیه السلام څخه پټ وویل : ځمونږ مالونه خو د اسلام څخه د دفاع او جهادي سرګرمیانو په خاطر همداسې بې پروا او شاړ پاتې شوه چې په نتیجه کې ختم او ګډوډ شو، اوس خو اسلام مضبوط او مسلمانان زیات شو، نو مونږ به د خپلو مالونو ساتنه او خدمت وکړو چې نور راڅخه ضایع نه شي، او هغه مخکنې نقصان یې هم جبیره او پوره کړو. نو الله تعالی ځمونږ د هغې ارادو رد وکړو او یې فرمایل: (وَأَنْفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ). نو معلومه شوه چې د مالونو سرېراه کول او خدمت یې کول

په داسې طريقه او انداز چې جهاد ورسره پرېښودل شي، دا کار الله تعالی په هلاکت کې وشمېرل ، او مونږ ته د غزا کولو حکم وشو.

راځئ چې وګورو د هغوي د خوراک څه صفت او کيفيت وو؟ په صحيح بخاري کې د انس رضي الله عنه څخه روايت نقل دي وايي: جې يوه لپه( موټي) وربشي به مو راوړل شوي، او د زړي او بوي ناکې وازدي سره به ګډي کړي شوي، او خلکو ته به مخې ته کيښودل شوي، خلک به ښه وږي وو، خو له ډيره بويه او بې خوندي به له تالو (حلقه) نه ښکته کيدی.

رسول الله صلى الله عليه وسلم ته په خپله دومره ډيره لوږه رسيدلي وه چې په يادولو او ويلو يې د انسان زړه چوي او سترګې يې نمجني او له اوښکو ډکوي، انس رضي الله عنه وايي: مونږ چې کله د خندق په غزا کې خندق (لوي لختي او وياله) کنله، يوه غټه تيږه پکې راووتله، صحابه لاړه نبي عليه السلام ته يې شکايت وکړو چې غټه تيږه راووته، هغه مبارک وفرمايل: (أنا نازل) زه په خپله ورکوزيږم. بيا ورپاڅيدو او خيټې پوري يې له لوږې تيږه تړلې وه، او دغه مهال مونږ دري ورځې ډوډي څکلي هم نه وه.

او په صحيح حديث کې راځي چې انصارو او مهاجرو صحابه وو سهار په يخنې کې خندق کنلو، نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه لوږه او ستوماني وليده ، وفرمايل: ( اللهم ان العيش عيش الآخرة ، فاغفر للأنصار والمهاجرة). يا الله حقيقي ژوند خو د اخرت ژوند دي، ته انصارو او مهاجرو ته بخښنه وکړه. نو صحابه کرامو ورته جواب کې وويل:

نحن الذين بايعوا محمدا ==== على الجهاد ما بقينا أبدا.

مونږ هغه څوک يو چې د محمد صلى الله عليه وسلم سره مو بيعت کړيدي، په جهاد باندې ترڅو چې ژوندي يو .

له دي وروسته مونږ له هغه چا پوښتنه کوو چې د اسلامي دولت باره کې د سايس بیکو په مفهوم خبري کوي:

س1) په مدينه منوره کې د نبوي دولت مساحت څومره وو؟

س2) د احزابو (دخندق) د جنګ په مهال دغه مساحت څومره شو ؟ او خاصکر کله چې د بني قريظه يهودو خپل عهد او پيمان مات کړو؟

س 3) آيا بيا وروسته نبوي دولت پاتي او که نه تس نس او ختم شو؟

س 4) او که پاتي وو نو ولي پاتي وو؟

س 5) او ايا دا ممکن ده چې دغه شکل او صورت د اسلامي دولت لپاره يو کم او ادنی حد وي چې د اسلامي دولت د مساحت لپاره بسنه او اکتفاء وکړي؟

س6) د احد او خندق غزاګانو ته په کتلو سره، څومره ځمکه او هيوادونه نيول د اسلامي دولت لپاره ضرور دي؟ ځکه هلته د ښځو او ماشومانو د دفاع لپاره هيڅ نه وو. او دومره يره په جنګياليو راغلي وه چې هيڅوک له خپله ځايه نه پاڅيدو اګر که دهغه په نصيب کې د رسول الله صلی الله عليه په خواکې جنت هم وي.

س7) د قوت او مشري مقدار څومره وو چې رسول الله صلی الله عليه وسلم غوښتل چې د يهودو د مديني په دريمه برخه ميوو صلحه وکړي؟ او حال دا چې هغوي ته به يي د شرک او جاهليت په وخت کې يوه خرما( کهجوره) هم نه ورکوله.

## اوس سؤال دادي:

ايا په عراق کې اسلامي دولت د دولت شروط د مساحت، قوت، او ځمکو نيولو او ....پوره کړيدي او که نه؟ چې نبوي دولت سره يې مقارنه او مقايسه کړو. او ديته هم بايد وکتل شي چې دواړه دولتونه د څومره مشکلاتواو ناورينونو سره مخ او لاس په ګريوان دي؟ او څومره فرق په دواړو کې شتون لري؟

## موحده وروره!!

زه د انبار او دهغې د عزت او دبدبې باره کې خبره نه کووم، چې څنګه الله تعالی کفر اود کفر بیرغ ټیټ او ذلیله کړو، او څنګه داسلام مناره هسکه،شمله یې رپانده، او عقیده یې جوړه شوه، بلکې دا د اسلامي دولت د زمریانو په لاس رپانده او اوچته شوه، او دښمنان هم د دې خبرې اعتراف کوي.

او زه د اسلام د سنګر، د زمرو کور، دیالي او پکې شوي جنګونو باره کې خبرې نه کووم چې څنګه د هغوی عزت او سرلوړي دیته ورسیده چې د ټولو مرتدینو په ختمیدو یې د خوشحالي محفلونه په عموم او بعقوبه کې ولمانځل.

زه د موصل او د موصل شاه زلمو باره کې نه غږیږم، او نه د هغې د مشر د اعتراف باره کې چې ویل یې مونږ په موصل باندې قبضه نه لرو او هغه ځمونږ له لاسه وتلې دی، چې بالآخره هغه او ټول لاسپوڅې یې په الداوسة نومې ځای کې محاصره او راګیر وو، او په ټول موصل کې د اسلامي دولت  حکم حاکم او خبره د منلو او عملي کولو درجې ورسیده ، او پوره اختیار ورته حاصل وو.

زه د بغداد او شاو خوا علاقو باره کې نه غږیږم، او نه دا وایم چې څنګه حکیم دا غوښتنه وکړه چې کرخ دې دسنیانو او رصافه دې د شیعګانو شې، او ولې امریکایانو په رضوانیه، یوسفیه او اسکندریه باندې د مثلث الموت( دري ګوني مرګ) نوم کیښودو، ماته په هغې ورځ کې د دغې ځایونو لیدل له نژدې څخه په نصیب شوي وو، او زه پوهیږم چې مرتدینو او امریکایانو ته هلته او سیدل او ننوتل یو ناممکن کار او د ناشونې خوب لیدل وو.

زه د کرکوک او صلاح الدین باره کې او هلته د الله تعالی د نعمتونو په هکله خبرې نه کووم، چې څنګه په یوه ورځ کې صلاح الدین نومې ځای د مسلمانانو لاس کې وغورځیدلو.

بلکې زه نن د هغه ځاي باره کې غږیدل غواړم کوم چې د اسلامي دولت یو هیره شوي سیمه ده، او خاصکر مخکې له دي چې په هغي ځمونږ د جنس او وطن مجرمان او خائنان قبضه وکړي او خپل لاسته یې راوړي، ځکه هغوي نه غواړي چې د الله تعالی په ځمکه د سلفو منهج حاکم او بر لاسې شي. زه د عرب جبور نومې ځاي خبره کووم، الله تعالی دغه منطقه د جهاد د نعمت په سبب فتحه،او د اولي ورځې څخه ټول مجاهدین د اسلامي بیرغ لاندي راوغونډ کړه، یواځې په دغي منطقه کې ځمونږ د مجاهدینو شمیره دري زرو ته ورسیده، او شرعي حدود یې نافذ، ټول ظلمونه یې ختم، مظلوم ته یې خپل حق واپس، امن یې خپور، او فقیرانو ته یې د نفقې بندوبست وکړو، او دا ثمره او نتیجه هله په لاس ورغله چې ډیر سخت جنګونه، تکلیفونه، مرګونه، زخمونه یې وګالل، نو بیا ځمکه له نجسو او پلیتو باغیانو ازاده او هغوي یې تري شرمنده وشړل.

او الله تعالی ورسره دا احسان وکړو چې په دغه منطقه کې د دښمنانو ځمکنې وسائل (ټانک، موټر، ټینکر او ....) بند شو، بیا وروسته هوائي جازونه هم نه شو راتلاي، نو بې پلوټه طیاري به یې رالیږي چې بالآخره الله تعالی هغه هم بندي او شنډي کړي.

د ټولو خلکو په مخکې د امریکایی لښکر د قوماندان معاون اعلان وکړو چې دا منطقه ځمونږ د قبضي او تسلط نه بهر ده، نو له امریکا او ګاونډیو خائنو دولتونو څخه یې قسماقسم وسائل راوغوښتل او دایې وویل: عرب جبور خاوره او وطن د هر زنده سر ( ژوندي مخلوق) لپاره سوزیدلی او محرومه منطقه ده، هیڅوک به دلته نه ځي، او بمباري یې پري شروع کړه، او د سوچ خبره داده چې د عرب جبور او شاوخوا مساحت له اوسنې مدینې منوري څخه څو چنده زیات دي - د نبوي دولت د شروع او اعلان د وخت مدنیه خو لاپریده - . نو اوس سوال دادي که

اسلامي دولت يواځې په عرب جبور کې اعلان شوي وي هم حقيقي دولت به وو ؟ او که نه؟

او مونږ د الله په فضل نن سبا ټول اسلامي امت ته زيري ورکوو اګر چې مونږ سره اخوان المسلمين د حزب اسلامي تر مشري لاندي، او په عراق کې سروريانو د الجيش الاسلامي تر مشري لاندي خيانت هم وکړو، خو بيا هم ورځ په ورځ ترقي کوو، او دعرب جبور په شانته ډيري منطقې لکه ديالي، موصل، کرکوک، بغداد، او انبار ځمونږ تر قبضې او ولقي لاندي راغلي دي.

او مونږ په ډيري خواشيني سره دا اعتراف کوو چې ځمونږ د لاسه ډيري نيول شوي منطقې بيرته د دشمن لاسته ورغلي، خو سبب يې د مقاومت سياسي مجلس له خوا مونږ سره دوکه او صليبيانو سره تړون او دوستانه وه، دوي د صليبيانو ډير مخلص ملګري او جاسوسان وو، او خاصکر چې دوي سره شريک اوسيدل او مونږ پري د ورونو ګومان کولو، خو هغوي مونږ له شانه په خنجرونو ووهلو، نو الله تعالی دي ځمونږ بس او کافي شي، او هغه الله ډير ښه کارساز دي.

او په آخر کې زه مسلمانانو ته د رافدينو په هيواد او خاصکر د اسلامي دولت لښکريانو ته د رمضان د مياشتې د راتلو مبارکې او زيري ورکووم، نو دالله تعالی شکر دي چې مونږ يې د روژي ، د جهاد، او د الله تعالی په لاره کې د شهادتونو مياشت ته راورسولو.

يارب يا ذا الفضل من فوق السما **** هذا الصيام خالصاً هذا الظما

وجلادنا الأعداء في ظلم بنا ***** فاقصم كفوراً لايهاب الأعظم .

ياربه! يا د اسمانونو د بره څخه د فضل او احسانه خاونده، دا روژه او دا تنده خاص ستا د رضا لپاره وګرځوه، او ځمونږ د دښمنانو سره جنګ چې په مونږ يې ظلم کړيدی هم ستا لپاره وګرځوه، او ماته کړه ملا د هر کافر چې له عظيم ذات الله تعالی څخه نه ويريږي.

الله تعالی دي تاسي ته د نيکو، بهترينو، پاکو، او پوره اعمالو د کولو توفيق درکړي، او دشپې عبادت کوونکې او د ورځې شاهسوران اوسئ، ځکه چې اسلامي امت په برکتې میاشت کې ستاسی جنګ، او جهاد ته سترګې په لار دي، نو د مسلمانو زړونه خوشحاله او کافرو ته داسئ څه وښايې چې هغوي تري يريږي، يا څمونږه ربه!! مونږ ته څمونږ ګناهونه او په کارونو کې اسراف معاف کړه، او مونږ ثابت قدمي کړه او په کافرو مو کامياب کړه.....آمين.